ژباړه: مؤمنان د الله عزوجل دوستان دي او دوی ځیني د ځینو دوستان دي او کافران د الله او د مؤمنانو دښمنان دي، الله عزوجل د مؤمنانو تر منځ دوستانه اړیکي لازمي ګرځولي دي او دا یې بیان کړي چې دا د ایمان له لوازماتو څخه ده او د کافرانو له دوستانې څخه یې منعه کړې ده او دا خبره یې بیان کړې چې د کفارو سره دوستانه اړیکې د مؤمنانو په حق کې منعه دي، یعني مؤمنان به د کافرانو سره دوستانه اړیکې نه پالي.

نو د مؤمنانو به خپل منځ کې دوستانه اړیکې وي چې د یو بل دفاع به کوي، د یو بل مدد به کوي که څه هم په وطنونو، قومونو او رنګونو یا ژبو کې بېلتون ولري، او دغه موالات به په عملي توګه راښکاره کوي یوازې په لاریونونو، چیغو او نعرو به بسنه نه کوي او نه به خلک دغې ته هڅوي بلکې خلک به شرعي جهاد ته هڅوي، د کفارو د ظلم او استبداد په مقابل کې به یې پاڅون ته هڅوي، یوه مقوله مشهوره ده وایي: لا یفلّ الحدید إلّا الحدید! یعنې اوسپنه به په اوسپنې سره پخېږي او ماتېږي، نو داسې نشي کېدای چې کفار دې په مسلمانانو بمونه وروي او مسلمانان دې ورته په لاریونونو، سوالونو، زاریو او غندنو بوخت وي بلکې د اوسپنې مقابله به په اوسپنې سره کوي، خپله اسلامي عقیده او همدردي به راښکاره کوي او د مسلمان نه به د ظلم مخه نیسي، که دا هېڅ نشي کولای نو د کفارو نه به برائت کوي هغوی سره به د مزو او خوندونو په مجلسونو کې نه کښېني او نه به ورسره دیپلوماتیکې اړیکې پالي، نه به ورته د سیل او د تفریح ځایونه برابروي، بلکې د دښمن په نظر به ورته ګوري چې دا هم ابراهیمي سنت دی، لکه الله عزوجل مونږ ته د ابراهیم علیه السلام حال داسې رانقل کړی دی، اللّٰه تعالی فرمایي:

{قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيٓ إِبْرٰهِيمَ وَالَّذِينَ مَعَهُ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُا مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدٰوَةُ وَالْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُۥ}، [سُورَةُ المُتَحنَة : ٤]

ژباړه: ستاسې لپاره د ابراهیم علیه السلام او د هغه د ملګرو (په کیسه) کې یوه غوره نمونه ده، چې هغوی خپل قوم ته په ډاګه وویل: مونږ له تاسې او ستاسې له دغو معبودانو څخه چې د الله پر ځای یې بندګي کوئ، په ټینګه بېزاره یوو. موږ ستاسې څخه منکر شوي یوو او زمونږ او ستاسې ترمینځ د تل لپاره دښمني او کینه ولوېدله، ترڅو پورې چې پر یوه الله ایمان رانه وړئ.

نو مسلمان به هم له کفارو د ابراهیم علیه السلام په څېر بېزاري کوي په همدې کې د ایمان او د توحید حفاظت پروت دی، او په همدې سره یې ایمان کمال ته رسېږي او له ډېرو دیني او دنیوي مصیبتونو څخه بچ کېږي، په حدیث کې راځي:

(عن ابي امامة، عن رسول اللّٰه ﷺ انه قال: من احب لله وابغض لله واعطى لله ومنع لله، فقد استكمل الإيمان)، [رواه أبو داود برقم: ٤٦٨١]

ژباړه: د ابو امامه رضی اللّٰه عنه څخه نقل دي چې هغه یې د رسول اللّٰه ﷺ څخه نقلوي چې هغه فرمایلي دي: چا چې د الله لپاره مینه وکړه او د الله لپاره یې کینه وکړه، د الله لپاره یې یو شی ورکړ او د الله لپاره یې منعه کړ نو ایمان یې پوره شو.

او په یو اثر کې دي:

(عن ابن عباس قال: من أحب في الله، وأبغض في الله، ووالى في الله، وعادى في الله، فإنما تنال ولاية الله بذلك، ولن يجد عبدٌ طعم الإيمان وإن كثرت صلاته وصومه، حتى يكون كذلك، وقد صارت عامة مؤاخاة الناس على أمر الدنيا، وذلك لا يجدي على أهله شيئاً)، [رواه ابن جرير وابن المبارك: ۳۵۳]

ژباړه: د ابن عباس څخه نقل دي هغه وايي: چا چې د الله لپاره مينه وکړه او د الله لپاره يې کينه وکړه، د الله لپاره يې دوستي وکړه او د الله لپاره يې دښمني وکړه نو په يقيني توګه د الله دوستي په همدې سره لاسته راځي او هېڅکله به يو بنده د ايمان خوند ونه مومي که څه هم مونځونه او روژې يې ډېرې وي، تردې چې همداسې شي خو اوس عامې دوستانې د خلکو د دنيا له وجې دي چې دا به ورته هېڅ ګټه ورنکړي.

نو مجاهد ته پکار دي چې د ولاء او براء د عقيدې په اساس وجنګيږي او په جهاد کې د قوم، نسب او وطن لحاظ ونه ساتي بلکې د اسلامي ورور ګلوۍ له مخې مؤمن سره نرمي وکړي که د هر ځای او هر ملک وي او له کافر سره سختي وکړي که د هر ځای او هر ملک وي چې همدا د شرعي جهاد تقاضا ده او همدغه يې مقصود دی.

اوس نو تاسې دغه موجوده د اسلام په نامه د واک په سر په جګړه بوختې نيابتي ډلې وڅارئ چې د دوی د مبارزې له پيله کومه دعوه او تګلاره وه او اوس يې کومه دعوا ده، له دغو ډلو څخه به د سوريې په جولاني نه غرېږو، ځکه چې د نوموړي د منهج په بدلولو به چېرته په بله مقاله کې بيا تفصيلي بحث وکړو، راځئ دلته په خراسان کې تاسې د پاکستاني طالبانو د تحريک جاج واخلئ، دلته په لنډه توګه دا وضاحت اړين بولو، دوی چې د صوفي ملا هيبت په وده کې بند دي نو د دوی داعيه هم کټ مټ د هغوی په څېر ده، دوی هم د هغوی په څېر د جهاد د دعوې ترڅنګ د جهاد د اهدافو ضد مفکورې پالي او عملي کوي يې چې هغه بين المللي کفري اصولو ته ژمنتيا ده چې وخت په وخت امريکا او ملل ملحده ته په ډېره مينه د خپلې وطني جګړې وضاحت ورکوي، د دې ترڅنګ يې جګړه د قوميت او وطنيت له ګمراه عقيدې سرچينه اخلي، د توحيد پرځای يې عقيده له ديوبنديت، صوفيت او سيفيت څخه ډکه ده، د کفارو او طواغيتو سره د براء په عقيده باور نه لري، همدارز ډېرې نورې کړنې يې هم له شرعي جهاد سره په ټکر کې دي، هدف مو دا دی چې د دوی مشرانو طالب مرتدينو هم د خپلې تجارتي جګړې په لړ کې همدغه اصول پالل، که له امريکا سره يې سمبوليکه جګړه مخ ته وړله، نو د يو بل صليبي ملحد بلاک حربي کفارو (روسانو) سره يې دوستانه ښه ګرمه وه، د پاکستاني، ايراني او نورو طواغيتو سره يې همغه زړه ورور ګلوي اوس هم روانه ده، بين المللي اصولو او کفري قوانينو ته يې له همغه وخت څخه ژمنتيا درلوده اوس خو نو پرې پوره ايمان لري، نو ځکه د يوې ډلې عقيده چې له پيله د تصوف له مردار ډنډ څخه خړوبېده، د حربي کفارو سره يې له همغه وخته دوستانه اړيکې او راشه درشه درلودل، د نړۍ ټول مرتد نظامونه او طواغيت يې ښه خواږه دوستان وو، او له پيل څخه د نبوي منهج پرځای په طاغوتي

تګلاره روان وو، نو د دې یون پایله له دې پرته بله نه راوځي چې تاسې یې اوس په عمل کې اسلام او مسلمانانو سره دښمني وینئ او د همدوی په پل او تګلاره د روان تحریک طالبان پاکستان څخه هم بله تمه مه لرئ، د دوی راتلونکی هم له دوی څخه بدل نه دی.

نو د صوفیانو دا موجوده إمارت څه په یو دم د ذلت او پستۍ دغه ژورو کندو ته نه دی پرېوتی، بلکې دوی د پګواش یهودي اداري په ډېر مدار مدار د دې مردار ډنډ په غاړه ودرول چې اوس یې نو مکمل ورټېله کړل او دا دی په هر قسم مردارۍ کې غوټې وهي خو ځانونه بیا هم پاک او سپېڅلي بولي.

پښتانه یو متل کوي چې: د لمدي ختې لرې اوبه بهانه وي، نو څکه د غرب کلالانو د تصوف په خوسا شویو اوبو د إمارت لمدې ختې ته په دوحه کې د دیموکراسۍ لرې اوبه ورکړې او دا دی اوس یې په نړیوال کفري قالب کې ترې د خپلې خوښې بتان جوړ کړل.

هو! د طالب ملېشو ګمراه مشرانو لړ کار غوښته او د پګواش یهودي اداري د هڅو پایله وه چې ملېشې یې آن په ۲۰۰۷م کال کې کفارو سره د مذاکراتو په نامه د اسلامي امت په سر د سودا مېز ته په خپله استخباراتي هډه دوحه کې راکش کړل.

تاسې به په همدې تړاو د طالب ملېشو د یو لنډ پېري مشر ستانکزي خبرې اورېدلې وي، چې وایي مونږ په ۲۰۰۷م کال کې امریکایانو سره پټې خبرې پیل کړې هغه مهال چې دوی ته په دوحه کې سیاسي دفتر خلاص شو، د طالب مشرانو

کورنۍ هلته ور وکوچېدلې نو له همغه وخته تر اوسه یې ټول لګښت امریکا ورکوي، دا یوازې د غرناطي ابو داود د پګواش لخوا بګېل شوی لنډ پېری ستانکزی نه ؤ، چې امریکایانو سره یې د مسلمانانو په سر په دوحه کې په پټه توګه معامله پیل کړه بلکې د آی ایس ای د دیوال ښارو او ګونګه شهزادګۍ او د امریکایانو ملا براډلي او عمبر سرۍ غوا ملا عبدالکبیر هم په دې معامله کې آن له پیله شریک وو، په دې اړه د طالبانو د یو قومندان دادالله اعتراف هم موجود دی، چې ذکر شوي کسان یې له ډېر پخوا راهیسې امریکایانو سره په یوه پټه دسیسه او معامله تورن کړي وو، او دا دی تاسې اوس د همغه دسیسې او پټې معاملې عملي بېلګې وینئ، لنډه دا چې ملېشو ته د امریکا له لورې د واک او ځواک د سپارلو او د اسلام په نامه په دوحه کې د ډېزاین شوي دیموکراتیک نظام د تطبیق په پروسه له ډېره وخته کار روان ؤ، خو کله چې په خراسان ولایت کې د طالب ملېشو په دغه غدر او خیانتونو مخلص مجاهدین پوه شول، دا هغه وخت ؤ چې الله عزوجل په ټولو مسلمانانو په نبوي منهج د ولاړ نړیوال خلافت د قیام پیروزینه وکړه، د سرلوړي خلافت د لمر وړانګې د خراسان اسمانڅکو غرونو هم ښکل کړې، او د إمارات له صف څخه ګڼو مخلصو او متدینو مشرانو او کشرانو د مسلمانانو له خلیفه سره بیعتونه وکړل، د إمارت لنډه غر ډېر کله وایي چې د اسلامي خلافت مجاهدین پردي دي، د دې سیمې خلک نه دي او نه هم ولسي ریښه او ملاتړ لري نو دوی په دې هم سترګې پټوي چې هغه مهال چې د دوی په لیکو کې

کوم زړور، مخلص، دیانتداره او اشغالګرۍ امریکا ته ډېر درد سر مجاهدین وو، نو هغوی ډېری ترې د اسلامي خلافت لیکو ته راغلل، د نمونې په توګه د عبدالروف خادم، سعد إمارتي، عمر کاروان په شمول د ګڼو مشهورو او نامتو قومندانانو یادونه کولای شو.

لنډه دا چې دغې چارې امریکا او د دوی طالب ملېشې له سختې وارخطایۍ او ډار سره مخ کړل، په خراسان کې د اسلامي دولت ظهور یې د هغه مهال راتلونکې یعني د ملېشو د اوسنۍ واکمنۍ لپاره ستر خطر وګاڼه، له همغه پیله امریکا د جمهوریت له مأمورینو وغوښتل چې نه یوازې طالب ملېشو ته په اسلامي دولت د بریدونو لپاره لارې ورکړي بلکې په فزیکي ډول یې خپل دواړه مأمورین یو له بل سره همکاران وګرځول.

د ختیځ ولسونه په دې ګواه دي چې د إمارت لنډه غر او د جمهوریت چرسیان اربکیان به په یوه سنګر کې د اسلامي خلافت پر خلاف جنګېدل او یو بل ته به یې نه یوازې دا چې د تګ راتګ لارې ورکولې بلکې نور سهولتونه او امکانات یې هم ورته برابرول چې په دې اړه ګڼ ثبتونه زموږ په مستندو إصدراتو کې تاسې کتلي دي، امریکا چې د ډار پیریانو نیولې وه، نو د همدغه هڅو په دوام یې وغوښتل چې باید نور د جمهوریت له مرتدینو واک او ځواک واخیستل شي او د اسلام په نامه یې دغه اسلام بدناموونکو حشراتو ته ورکړي، ځکه د امریکا هدف همدغه و چې د دوی ملېشې خو د اسلام په نامه راپورته شوې او دوی به په اسانۍ سره وکولای شي چې د اسلامي شریعت په تشو شعارونو د اسلامي دولت د حقیقي اسلامي شریعت إدعا وننګوي او په ښه توګه به د خپلو ملېشو او ماډرن دوحه نظام په راوستلو د حقیقي اسلامي شریعت مخه ډب کړي، نو همغه وو چې د طالب ملېشو په ملاتړ یې د اسلامي دولت پر مجاهدینو خپل سخت بمبار لا پسې چټک کړ.

هو! خبره دې حد ته ورسېده چې په ډېر ښکاره او علني شکل امریکا د اسلامي دولت پر خلاف د طالب ملېشو ملا وروتړله، په ننګرهار کې یې د سپین غر په ژیران کندو د پاکستان له اړخه خپلې ملېشې د اسلامي دولت په تمکین رامرش کړې او همَّهاله یې له لاندې اړخ څخه هم د جمهوریت د مرتدینو سره یوځای خپلې همدغه ملېشې په مجهزو شپنیو دوربینونو او نورو ماډرن وسلو سره مجهز کړې او د اسلامي دولت پر تمکین یې له څو اړخونو د برید امر ورته وکړ، چې دا کومې پټې او پناه خبرې نه دي بلکې د شرقي زون ټول ولسونه د دې هرڅه شاهدان دي او تاسې د احزابو د دغه شریک ائتلاف په اړه د جمهوریت د مرتدینو، د طالب ملېشو د مشرانو، د ټرمپ او د امریکایي پوځیانو اعترافات په ټولنیزه میډیا او زموږ په مستندو ویډیوګانو کې کتلای او اوریدلای شئ.

د لارو د بندېدو او د خوراکي توکو د نه ترلاسه کولو له امله د اسلامي دولت په تمکین کې لوی او واړه داسې حال ته ورسېدل چې د ونو په خوړولو یې پیل وکړ، کله چې ګڼ مجاهدین د امریکایي B٥٢ الوتکو او B١ کروز توغندیو او ډرونونو په بمبارونو کې په شهادت ورسېدل نو ملېشو د اسلامي دولت پر تمکین قبضه وکړه او هلته سل په

سله نافذ اسلامي شريعت يې ختم کړ او پرځای يې د شرک تور تږغر راخور کړ او ځينې ساحې يې د معاملې له لارې د جمهوريت عسکرو ته پرېښودې، چې هغوی پرې سيکولر قوانين حاکم کړل، بيا د امريکا ولسمشر طالب ملېشو ته په پټه يارانه کې د بايللي حيثيت د بېرته إعادې لپاره خپلو ملېشو سره د خولې په زرګرۍ جګړه بوخت ؤ، همدې ټرمپ اعلان وکړ چې اوس د دې وخت دی چې خپل سرتېري راستانه کړي کوم مأموريت چې د دوی سرتېرو ترسره کاوه هغه اوس د دوی تازه دمه نيابتي ملېشې په ډېر کم لګښت او په ډېر اخلاص ترسره کوي.

همغه وو چې له يوې مياشتې څخه په کمه موده کې امريکا د جمهوريت له مرتدينو څخه واک او ځواک واخيست او خپلو تازه دمه نيابتي ملېشو طالب مرتدينو ته يې وسپاره، د دوی مشران يې له خپلې پوځي هډې قطر څخه په خپلو نظامي الوتکو کې کندهار او کشران يې په ورسپارل شويو امريکايي ټانکونو سپاره په کابل او نورو ښارونو کې ښکته کړل.

په کابل د تازه دمه نيابتي سرتېرو لخوا امريکايي نظام حاکم شو.

هغه نظام چې د نړۍ ټولو حربي کفارو سره د قتال په ځای دوستی ته اولويت ورکوي.

هغه نظام چې د رافضي، صوفي، سيفي مشرکينو په شمول د ټولو مشرکينو ساتونکی او د دوی د شرکي عقايدو ترويجوونکی دی.

هغه نظام چې د بانکي سودي سيستم څخه رانيولې د حرامو مالياتو او نورو حرامو شيانو په روا والي قايل دی.

هغه نظام چې جهاد يې حرام وباله او د الله عزوجل ټول حدود يې تعطيل او تبديل کړل.

هغه نظام چې د وطنيت په کفري عقيده ايمان لري او د بين الملل د کفري اصولو په منلو اعتراف کوي.

او هغه امريکايي اسلام چې د اسلام په هېڅ ناقض باور نه لري او د لسګونو نورو اسلام ماتوونکو نواقضو مرتکب شو.

هغه نظام چې د امريکا په ډالريزو کڅوړو او نورو هر اړخيزو پټو او ښکاره مرستو حاکم شو.

دا دی د امريکا نيابتي ملېشي هم وخت په وخت د امريکا په شمول ټولو حربي کفارو ته د امن ضمانتونه ورکوي، او امريکايي مشران يې په ډېره ښکاره او علني توګه خپلې ملېشې د اسلامي دولت په خلاف په شا ټپوي چې ملېشې هم د خپلو امريکايي بادارانو دغې ستاينې او ملاتړ ته خوشاله دي.

اوس نو د ټرمپ د خولې د ډوزو او د خپلو ملېشو سره د زرګرۍ جګړې په شور کې يې د بهرينو چارو وزير دا اعترافات هم وکړل چې دوی طالب ملېشو سره د اسلامي دولت پر خلاف ډېره ښه همکاري لري او شريک مأموريت مخ ته وړي.

نو طالب ملېشې نه يوازې د غربي حربي کفارو کته کړې خره دي بلکې د شرقي کفارو سرو روسانو سره هم د اسلامي دولت پر خلاف شريک ائتلاف لري چې نه يوازې د روسيې مشر پوتين په خپله خوله دا اعتراف کوي بلکې د ملېشو مشران هم په ښکاره او علني ډول د روسيې په دوستۍ فخر کوي، خو د دې ټولو کره ثبوتونو، اعترافاتو

او اړوندو مستندو ویډیوګانو په کتلو او اورېدلو سره به بیا هم یو څوک طالب ملېشې مجاهدین او د آزادۍ فاتحین وبولي؟ نه داسې هېڅکله نه ده، اوس اسلام او مسلمانانو سره د دوی په غدر او خیانتونو د اسلامي امت بچی بچی پوه او خبر دی.

**نو د ملېشو کشرخېلو ته وایو!**

له کفارو څخه د مسلمانانو پر خلاف د مرستو په اخیستلو تاسې مرتد ګرځېدلي یاستئ، او دا څه تهمت او تور نه دی بلکې نه یوازې دا ستاسې د مشرانو او ستاسې د بادارانو شریک اعترافات دي بلکې اوس ستاسې په لیکو کې د منځنۍ رتبې چارواکي هم په دې پوه دي، په دې اړه ګڼ کره شواهد او ثبوتونه موجود دي نو له کفارو څخه د مسلمانانو پر خلاف د مرستو اخیستل او حربي کفارو سره دغسې صمیمانه دوستي پالل په اسلامي شریعت کې نه شته بلکې په ماډرن دوحه نظام کې روا ده، نو طالبانو د اسلام ضد ډېری کړنې ترسره کړې چې یو له هغو څخه د کفارو سره د اسلامي دولت مجاهدینو پر ضد مرسته کول دي او هم ورڅخه د هغوی پر ضد مرسته اخیستل دي، چې حکم یې ډېرو مسلمانانو ته واضحه دی خو بیا هم د ځینو ناخبرو مسلمانانو د خبرولو لپاره غواړو چې دا مسئله د شریعت په رڼا کې واضحه کړو، ان شاء الله.

نو که څه هم د علماؤ تر منځ د کفارو نه د نورو کفارو په مقابل کې د مرستې اخیستلو په اړه ژور اختلاف شتون لري خو د مسلمانانو په مقابل کې له کفارو څخه مرسته اخیستل یا ورسره د مسلمانانو پر خلاف مرسته کول؛ په دې اړه د علماؤ تر منځ هېڅ اختلاف نشته بلکې د ټول أمت په دې اتفاق دی چې د کفارو نه د مسلمانانو په مقابل کې مرسته اخیستل یا ورسره د مسلمانانو په مقابل کې مرسته کول حرام او د کفر لامل ګرځي، چې په اړه یې د قرآن، حدیث او د أمت له اجماع څخه ډېری دلایل شتون لري چې دلته به د ځینو دلایلو په راوړلو اکتفاء وکړو:

۱/ اللّٰه عز وجل فرمايي:

{يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَتَّخِذُوا ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ}، [سُورَةُ المَائِدَة : ٥١]

ژباړه: اې مؤمنانو! یهود او نصارا خپل ملګري مه نیسئ، دوی په خپلو منځو کې سره ملګري دي او که له تاسې څخه څوک هغوی خپل ملګري ونیسي، نو هغه به هم په هماغو کې شمار وي. په دې کې شک نشته چې الله تعالی ظالمان له خپلې لارښوونې څخه بې برخې کوي.

د دې آیت په تفسیر او وضاحت کې د اهل السنة والجماعة د علماؤ اقوال ذکر کوو:

۱- امام شوکاني رحمه الله ویلي دي:

(والمُرادُ مِنَ النَّهْيِ عَنِ اتِّخاذِهِمْ أوْلِياءَ أنْ يُعامَلُوا مُعامَلَةَ الأوْلِياءِ في المُصادَقَةِ والمُعاشَرَةِ والمُناصَرَةِ)، [فتح القدير]

ژباړه: د دوی له دوستانې څخه د منع کېدلو مقصد دا دی چې له دوی سره د دوستانو په څېر چلند وشي په ملګرتیا کې، په اوسېدلو کې او په مرسته کولو کې.

۲- او رئیس المفسرین امام ابن جریر الطبري رحمه الله په خپل تفسیر کې ویلي دي:

(والصواب من القول في ذلك عندنا أن يقال: إن الله تعالى ذكره نهَى المؤمنين جميعا أن يتخذوا اليهود والنصارى أنصارًا وحلفاءَ على أهل الإيمان بالله ورسوله وغيرَهم، وأخبر أنه من اتخذهم نصيرًا وحليفًا ووليًّا من دون الله ورسوله والمؤمنين، فإنه منهم في التحزُّب على الله وعلى رسوله والمؤمنين، وأن الله ورسوله منه بريئان)، [تفسير الطبري]

ژباړه: د دې په اړه زمونږ په نزد صحیح قول دا دی چې داسې ووېلی شي چې الله تعالی ټول مؤمنان له دې څخه منع کړي دي چې د مؤمنانو په مقابل کې له یهود، نصارا او نورو کفارو سره دوستي او تحالف یا ملګرتیا وکړي او دا خبر يې ورکړی دی چې څوک د الله تعالی او د هغه د رسول او د مؤمنانو پرته له دوی سره دوستانه او ملګرتیا وکړي نو دا به د هغوی په ډله کې د الله تعالی او د هغه د رسول او د مؤمنانو په مقابل کې ولاړ وي چې الله تعالی او د هغه رسول به ورڅخه بېزاره وي.

٣- امام قرطبي رحمه الله وايي:

(وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ؛ شرط وجوابه؛ أي لأنه قد خالف الله تعالى ورسوله كما خالفوا، ووجبت مُعاداته كما وجبت معاداتهم، ووجبت له النار كما وجبت لهم؛ فصار منهم أي: من أصحابهم وهذا الحكم باقٍ إلى يوم القيامة في قطع الموالاة)، [الجامع لأحكام القرآن]

ژباړه: په دې آیت کې شرط او جواب شرط ذکر دي یعنې چا چې هم د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ خلاف وکړ لکه څنګه چې يې کفارو خلاف کړی دی له ده سره هم دښمني لازم ده، لکه څنګه چې له کفارو سره لازم ده او د نوموړي لپاره هم جهنم واجب دی لکه څنګه چې د کفارو لپاره واجب دی. نو دا له دوی څخه شو یعنې د دوی له ملګرو څخه شو، او دا حکم به تر قیامته پورې پاتې وي چې له دوی سره به دوستانه اړیکې نه پالل کېږي.

٤- او د امام قرطبي رحمه الله نه دویم قول هم نقل دی چې وایي:

قوله تعالى (وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ أي : يعضدهم على المسلمين ـ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ ـ بين تعالى أن حكمه كحكمهم؛ وهو يمنع إثبات الميراث للمسلم من المرتد)، [الجامع لأحكام القرآن]

ژباړه: د الله دا وینا چې فرمایي: - وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ - یعنې چا چې د مسلمانانو په مقابل کې له کفارو سره مرسته وکړه - فَإِنَّهُ مِنْهُمْ - الله تعالی دا خبر ورکړی دی چې د ده حکم به هم د هغوی په څېر وي چې دا له مسلمان څخه د مرتد لپاره میراث منع کوي. (یعنې چا چې له کفارو څخه د مسلمانانو په مقابل کې مرسته واخیسته یا یې ورسره مرسته وکړه نو دا مرتد شو چې له مؤمن سره یې اړیکه ختمه شوه، نو دا امکان نلري چې یو مسلمان وارث له دغې مرتد څخه میراث واخلي او یا هم دغه مرتد له مسلمان څخه میراث واخلي).

٥- علامه ابن القيم رحمه الله وایي:

(قد حكم الله ولا أحسن من حكمه أن من تولى اليهود والنصارى فهو منهم، فإذا كان أولياءهم منهم بنص القرآن كان لهم حكمهم)، [أحكام أهل الذمة ج/١ص٦٧]

ژباړه: الله تعالی فیصله کړې ده او د هغه له فیصلې څخه بله ښائسته فیصله نشته، دا چې

ځوک له یهودو او نصاراو سره دوستانه وکړي نو هغه به له هغوی څخه وي، نو کله چې د کفارو دوستان په نص قرآني سره له هغوی څخه شول، نو حکم یې هم د هغوی په څېر شو.

٦- امام ابن حزم رحمه الله ویلي دي:

(والأصح أن قوله تعالى «وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ» إنما هو على ظاهره بأنه كافر من جملة الكفار، وهذا حق لا يختلف فيه اثنان من المسلمين)، [المحلی ١١ / ١٣٨]

ژباړه: صحیح خبره دا ده چې د الله جل جلاله دا وینا په خپل ظاهر بناء ده، چې دغه کس د کفارو له جملې څخه یو کافر دی، او دا داسې حق دی چې دوه مسلمانان هم پکې اختلاف نه لري.

٧- امام شوکاني رحمه الله ویلي دي:

(وَمَن يَتَوَلَّهُمْ مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ أي: فإنه من جملتهم وفي عِدادهم وهو وعيد شديد فإن المعصية الموجبة للكفر، هي التي قد بلغت إلى غاية ليس وراءها غاية)، [فتح القدير]

ژباړه: یعني دا هم له کفارو څخه دی او په هغوی کې شمار دی او دا ډېر سخت اخطار دی ځکه هغه ګناه چې د کفر لامل وي دا هغه وي چې داسې انتهاء ته رسېدلې وي چې له هغې څخه اخوا ته نوره انتهاء نه لري.

٨- امام شنقیطي رحمه الله وایي:

(ذكر في هذه الآية الكريمة، أن من تولى اليهود والنصارى من المسلمين، فإنه يكون منهم بتوليه إياهم)، [أضواء البيان]

ژباړه: په دې آیت کې دا خبره ذکر ده چې کوم مسلمان له یهودو او نصاراو سره دوستي وکړي نو هغه به د دې دوستانې له امله له هغوی څخه شمار وي.

نو د امام طبري، امام قرطبي، امام شوکاني، امام ابن حزم، امام ابن قیم او امام شنقیطي ـ رحمهم الله ـ له ویناؤ څخه مونږ ته دا خبره معلومه شوه چې د مسلمانانو په مقابل کې له کفارو سره مرسته کوونکی یا ورڅخه مرسته اخیستونکی د کفارو له جملې څخه دی چې مباح الدم والمال دی.

٢ / په بل آیت کې الله تعالی فرمايي:

{لَّا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ}، [الأية آل عمران: ٢٨]

ژباړه: مؤمنان دې هېڅکله داسې نه کوي چې د مؤمنانو پر ځای کافرانو سره ملګرتیا او دوستانه وکړي، څوک چې داسې چلن وکړي، د هغه له الله تعالی سره هېڅ اړیکه نشته.

امام ابن جریر الطبري رحمه الله وایي:

(فليس من الله في شيء «يعني بذلك: فقد برئ من الله وبرئ الله منه، بارتداده عن دينه ودخوله في الكفر)، [تفسير الطبري]

ژباړه: د دې مقصد دا دی چې دغه انسان د الله نه بېزاره دی او الله له ده څخه بېزاره دی له دې امله چې (دغه کس) د الله له دین څخه مرتد شوی دی او په کفر کې داخل شوی دی.

نو دا آیت هم په دې دلیل دی چې له کافرانو سره د مسلمانانو پر خلاف هر ډول اړیکه حرامه او کفر ده.

او همداسې په دې معنا نور هم ډېر آیتونه او احادیث موجود دي خو د موضوع د اوږدوالي له

وجې يې پرېږدو.

**نو طالب ملېشو ته وايو!**

څنګه به تاسو مرتد نه یاست چې له کفارو سره مو د مسلمانانو په خلاف تحالف کړی دی، د مسلمانانو په خلاف مو ورسره علني مرستې کړې دي او هم مو ورځخه د مسلمانانو په خلاف مرستې اخيستې دي، هم د وسلې مرستې او هم د افرادو مرستې، هم استخباراتي مرستې او هم ډالري مرستې، هم ځمکنۍ مرستې او هم هوايي مرستې چې په اړه يې ستاسو داسې مستندات، اعترافات او د کفارو سره د اسلامي دولت ضد پرېکړې او تړونونه دليل دي چې هېڅ انکار ورځخه نشي کېدای نو له دغومره بې ساري مرستو او هماهنګيو وروسته به څنګه تاسې مسلمانان او مجاهدين ياست، څنګه به فاتحين ياست، په داسې حال کې چې ستاسو په کفر او ارتداد د قرآن ډېر آيتونه ګواه دي، د نبي ﷺ ډېر احاديث ګواه دي، او هم مو په خلاف د أمت د معتمدو علماؤ فتواوې موجود دي؟! هېڅکله مسلمانان نه یاست او نه هم مجاهدين او فاتحين یاست بلکې د کفارو کرايه کړي جګړه ماران یاست که له خپل کفر او ردّت څخه توبه ونه باسئ نو د قيامت په ورځ به مو د همدغه بادارانو سره حشر کېږي بإذن الله.

نو له طالب کشرانو غواړو چې خپل دنيا او آخرت مه بربادوئ له خپل ارتداد څخه توبه وباسئ، د الله دين ته راستانه شئ.

له عامو مسلمانانو څخه مو دا غوښتنه ده چې دغه د شرق او غرب د نيابتي ملېشو طالب مرتدينو په خلاف د اسلامي دولت د مجاهدينو ملا وروتړئ، ترڅو دا د حربي کفارو کرايه کړي ټټوان او په دوحه کې ډيزاين شوی د دوی دا حاکم نظام د الله عزوجل په مرسته د خراسان له خاروې نابود کړو او په ټوله نړۍ د الله عزوجل حقيقي اسلامي نظام حاکم کړو، إن شاء الله..

# د ملیشو لخوا

# د امام بخاري (رحمه الله)

## د قبر د ترمیم شرعي ارزونه!



**الحمدلله القهار والجبار الذي أمر بالجهاد خلاف جميع أنواع المرتدين والكفار والمشركين عباد االقبور والأحجار والصلاة والسلام على من حذّر الأمة أن يتخذوا معابد من قبور الصالحين والأبرار، أمابعد:**

د اسلام سپېڅلی دين يو کامل او شامل دين دی، د ژوند ټولو امورو، معاملاتو او هر اړخيزو مسايلو ته خپل احکام او تګلاره لري، داسې نه ده چې يو څوک دې راولاړ شي او د خپلو فردي او يا تنظيمي ګټو په محور دې د اسلام صريح احکام وڅرخوي.

تاسې په عملي توګه وينئ چې طالب ملېشې د اسلام له صريحو احکامو څخه په ډېره ښکاره توګه سرغړونه کوي، خپلو ځينو کفري کړنو ته توجيهات لټوي او ځينو کړنو ته په توجيهاتو موندلو هم نه توانېږي.

هسې خو د طالب ملېشو د ردّت، اسلام سره د غدر او خيانتونو او همدا راز د نورو  فسادونو او خباثتونو عملي بېلګې خورا زياتې او له شماره وتلې دي، داسې نه ده چې موږ په دوی کوم تور پورې کوو، بلکې دوی په دغه راز کړنو خپله نه يوازې اعتراف کوي بلکې په عملي ډول د اسلام د صريح احکامو په مرئ پښې ږدي او بيا ډېره د تعجب وړ خبره لا داده چې د دې هرڅه باوجود بيا هم دوی ځانونه مجاهدين او تر هرچا پاخه مؤمنان بولي.

د ملېشو د دغه ماډرن دوحه ديموکراتيک نظام په مختلفو اړخونو مو لله الحمد هم د مقالو او هم د رسالو او هم د مستندو إصداراتو له لارې مدلل بحثونه او مفصل توضيحات وړاندې کړي دي، د دوی دغه د شريعت په نامه د امريکا قرار دادي نظام چې د امريکا د نايټ کلبونو په مالياتو تکيه دی، له سره تر پايه به په کې يوه کړنه، يو عمل او فعل د حقيقي اسلامي شريعت موافق ونه وينئ، نو که د وخت په تېرېدو سره روزانه د خپل بواح کفر او د اسلام د ماتوونکو اعمالو عملي نمونې وړاندې کوي نو دا کومه د تعجب وړ خبره نه ده.

نو د دوی د همدغه اسلام ماتوونکو کړنو په دوام څو ورځې وړاندې د ملېشو يو لوړ پوړی پلاوی په ډېرو بدرګو او مانورونو د ازبکستان د مرتد نظام په کوربه توب د إمام بخاري رحمه اللّٰه د زيارت په پلمه د دغه طاغوتي نظام مېلمه ؤ، دوی له ځانه سره د هرات ولايت په خاصو باکيفيته ماربلو بار شپاړس غټ موټرونه هم ملګري کړي وو.

دا بېل بحث دی چې د ازبکستان د مرتد او طاغوتي نظام سره دغسې صميمي اړيکې، راشه درشه او ورور ګلوي د اسلامي شريعت له نظره څه حکم لري؟ په دې اړه موږ په مختلفو شکلونو مدلل توضيحات وړاندې کړي خو زموږ ددې مقالې موضوع دا ده چې په اسلامي شريعت کې په قبرونو د ودانيو جوړولو او د قبرونو پخولو ته اجازه شته او کنه؟ چې د ملېشو پلاوي د إمام بخاري رحمه الله زيارت ته د ماربلو ډکې لارۍ روانې کړې دي، او يا هم په دې اړه په اسلامي شريعت کې کوم حکم نه شته او په دې برخه کې اسلامي شريعت همداسې خاموشه پاتې شوی چې ملېشې دومره په زړورتيا داسې اقدامات کوي؟!

نو په دې به هم بحث نه کوو چې دا په کوم شريعت کې روا دي چې داسې په لوړ مصرف په داسې بدرګو د تورو قېمتي موټرو په کتارونو کې ياد پلاوی په پوره اسراف خپل سفر پيلوي او پرمخ درومي.

او دا ځکه چې ملېشو ته په داسې حال کې چې د حاکمیت لاندې یې ولس له فقره د خپل بدن غړي او بچي پلوري، هره ورځ د اقتصادي ستونزو له کبله د ځو کسانو د ځان وژنې خبرونه رسنیز کېږي، خو ملېشې یې بیا دغسې بېغمه بادوي، د دوی مخ پټی مشر کرنل ملا هیبت چې کله کله د اسلامي شریعت د حاکمیت باټې هم وهي د هغې خصوصي لګښت میلیونونو افغانیو ته رسېږي او په یوازې ځان له دې څخه اوږده کتارونه ورپسې روان وي، نو د دې نورو کشرخېلو په حق کې خو یې بیا دا متلونه سم دی چې:

خرې له برګې کم نه دی..

همداراز یو بل متل هم دی، وايي:

خر چې له خره کم شي غوږ ترې غوڅ کړه چې کرړه شي.

نو دوی که دریم او څلورم ودونه کوي، که په بهر کې یې اوس تازه په تازه تجارتونه پیل کړي، او یا په بهر او داخل کې د ماڼیو او مارکېټونو په جوړولو خپلو کې له یو بل سره سیالي او رقابتونه کوي نو دا کومه د تعجب وړ خبره نه ده، ځکه یو خو دا هر څه په ماډرن دوحه امریکايي قراردادي نظام کې روا دي، بل نو د دوی پرې څه لاس او پښه خوږه شوې، له یوه لوري ورته د امریکا له نایټ کلبونو پرېمانه اونیزې ډالري کڅوړې ښکاره رادرومي بلکې کومې چې ورته پټې رادرومي هغه هم وخت په وخت د دوی باداران د سیګار له لارې رسوا کوي، د دې ترڅنګ دا بیا یوه جلا موضوع ده چې ملېشو ته له ولسونو څخه په زور د حرامو مالیاتو اخیستل هم روا دي، نو د ولس د وینو په زبېښلو چې داسې عیاشۍ او خرمستۍ اوس نه کوي نو کله به یې کوي؟!

دوی ته نه دا اسراف او بذر ښکاري او نه د کومې ګناه او کوم خجالت احساس کوي، نه پرې ورته ځان بد ښکاري او نه هم د عمري عدالت له داعیې څخه شرمېږي.

ملېشو ته اوس دغه بېځایه لګښتونه اسراف نه ښکاري سره له دې چې د دغه عمل مرتکبین د شیطان وروڼه بلل شوي دي، الله تبارک وتعالی په سورة بني اسرائیل ۲۷ نمبر آیت کریمه کې فرمايي:
{إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوٓا إِخْوٰنَ الشَّيٰطِينِ وَكَانَ الشَّيْطٰنُ لِرَبِّهِۦ كَفُورًا}

ژباړه: بې ځایه لګښت کوونکي د شیطان وروڼه دي او شیطان د خپل رب ډېر ناشکره دی، کله چې دا ډول اسراف د یوه ژوندي انسان د ضرورتونو په پوره کولو وشي؛ دا حرام کار دی، د هغه چا به څه حال وي چې دا ډول اسراف یوه زیارت ته د تللو لپاره کوي؟!

ملېشې دې خبرو ته بالکل فکر نه کوي، چې دغه راز سفرونه او په داسې رش کش کې زیارت ته تلل د اسلامي شریعت له نظره څه حکم لري؟ ځکه د شریعت هر یو حکم دوی ته ډېر کوچنی ښکاري او هېڅ ارزښت ورته نه لري، نو یو سړی چې حربي کفارو سره په دوستۍ او د مسلمانانو په مقابل کې ترې په مرسته اخیستلو، د الله عزوجل د ټاکلو شرعي حدودو په بدلولو او تعطیلولو، د مرتدینو او مشرکینو سره په ورور ګلوۍ او نورو سترو کفري کړنو د کومې ګناه احساس نه کوي او دا هر څه ورته جایز برېښي نو دا کړنې خو د دوی په آند ډېرې وړې دي.

نو دوی ته خو د ثواب په نیت په داسې زرې موټرو

او اوږدو کتارونو کې د ازبکستان د مرتد نظام په کوربتوب زیارت ته تلل ثواب ښکاري حال دا چې د الله رب العالمین په رالیږلي محمدي شریعت کې د ثواب په نیت صرف درې مسجدونو ته تلل جائز او له دې پرته نورو یسې په دې نیت ګرځېدل حرام دي، دوی چې د چا زیارت ته د ثواب په نیت په داسې بدرګو او شور ماشور روان دي د همغه امام بخاري رحمه الله څخه په صحیح البخاری کې په ۱۱۲۱



نمبر باندې د ابوهریره رضي الله عنه څخه حدیث نقل دی، هغه فرمايي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي:
**(لَا تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلَّا إِلَى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ ، الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ، وَمَسْجِدِ الرَّسُولِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، وَمَسْجِدِ الْأَقْصَى)**، [رواه البخاري].
ژباړه: د ثواب په نیت به سفر نه شي کېدلی مګر صرف درې مساجدو ته، مسجدالحرام، مسجدنبوي او مسجد اقصی ته، خو ملېشې د شریعت د هر غټ او کوچني حکم په مخالفت کې واقع دي، نو ځکه خو دوی ته په دغسې سفرونو کې ثوابونه ښکاري.
اوس راځو دې بحث ته چې ملېشو په کوم دلیل او د شریعت د کوم حکم په اساس دا شپاړس لارۍ د باکیفیته ماربلو څخه ډکې کړې او د امام بخاري رحمه الله د زیارت د جوړېدو لپاره یې د ازبکستان مرتد نظام ته وسپارلې؟
آیا په اسلامي شریعت کې د قبرونو څخه د ودانیو په رنګولو، د لوړو قبرونو په هوارولو حکم شوی دی او که داسې حکم راغلی دی چې تاسې به د خپل مشر ملا عمر قبر ته هم مستقله زمکه وقف کوئ، هلته به پرې مزارات او ګنبدونه جوړوئ؟ همداراز بیا به هلته




د ولس څخه په اخیستل شویو حرامو مالیاتو ډول ډول قالیني هواروئ؟
بیا به په دغه زیارت کې د لنګر په نامه د غیر الله په نوم نذرونه ورکوئ؟ همداراز د ولس کورونه او عمومي لارې به ویجاړوئ او زیارتونو ته به پرې مستقل سرکونه جوړوئ؟
دا ټول هغه ناروا او حرام کارونه دي چې ملېشو یې د ثواب په نیت ارتکاب کړی دی او د الله تعالی د عامو وعیداتو مستحقین ګرځېدلي دي.
او همدارنګه د خپل واک لاندې سیمو کې به د نورو مرتدو چارواکو په قبرونو هم ودانۍ جوړوئ؟ بلکې د پخوانیو زیارتونو او قبرونو د ترمیم لپاره به ورته

بودیجه ځانګړې کوئ او دغه شرکي مزارات به پرې ترمیموئ؟

د دا ډول مزارونو ختمول چې هلته شرکي اعمال ترسره کېږي د جهاد لوی هدف دی، مګر د طالب ملېشو په څېر د کږو منهجونو پیروان یې تعظیم کوي، د فیوضاتو، برکتونو، د دعاګانو د قبلېدلو، د حاجتونو پوره کېدلو او د فائدې او د ضرر امید ترې کوي او د اسلام له مقدساتو یې ګڼي او ساتنه یې کوي چې دا د دوی د منهجي انحراف یوه لویه نښه ده، ځکه په اسلام کې د قبرونو تعظیم نشته، ګومبدې او مزارونه جوړول پرې نشته او نه یې هم په خوا کې لمونځ جائز دی، نه ورځخه د فیوضاتو، تبرکاتو او د حاجتونو طلب جائز دی بلکې دا کارونه د شرک لامل دي او د شریعت د ډېرو نصوصو څخه خلاف دي چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

۱- په حدیث کې راغلي دي: **(عَنْ أَبِي الْهَيَّاجِ الْأَسَدِيِّ، قَالَ: قَالَ لِي عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ: « أَلَا أَبْعَثُكَ عَلَى مَا بَعَثَنِي عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ ؟ أَنْ لَا تَدَعَ تِمْثَالًا إِلَّا طَمَسْتَهُ، وَلَا قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ)**، [رواه مسلم: ۲۲۴۳]

ژباړه: د ابي هیاج الاسدي څخه نقل دي هغه وایي: ماته علي رضی الله عنه وویل: آیا زه تا هغه کار پسې ونه لېږم چې زه ورپسې رسول الله ﷺ لېږلی وم؟ دا چې ته مه پرېږده یو بت مګر ماتوه یې، او نه یو لوړ قبر، مګر سموه یې.

(قبر مشرف) هغه قبر ته ویل کېږي چې بیرغونه ورباندې لګېدلي وي یا ورباندې آبادي جوړه شوې وي چې د لېرې څخه ښکاري او یا هم د نورو قبرونو څخه اوچت وي نو برابرول یې په دې توګه لازم دي چې د شریعت خلاف آبادي یا بیرغونه ترې ختم کړي او د نورو قبرونو سره یې برابر کړي.

۲- او په بل حدیث کې راغلي دي: **(عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: « نَهَى رَسُولُ اللَّهِ ﷺ أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ، وَأَنْ يُقْعَدَ عَلَيْهِ، وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهِ)**، [رواه مسلم: ۲۲۴۵]

ژباړه: د جابر رضی الله عنه څخه نقل دي هغه وایي: رسول الله ﷺ د قبر له چونه کولو څخه منعه کړې ده او له دې، چې څوک ورباندې له پاسه کښېني او له دې، چې آبادي ورباندې جوړه شي.

۳- او په بل حدیث کې راځي: **(عَنْ أَبِي مَرْثَدٍ الْغَنَوِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: لَا تَجْلِسُوا عَلَى الْقُبُورِ، وَلَا تُصَلُّوا إِلَيْهَا)**، [رواه مسلم: ۲۲۵۰]

ژباړه: د ابو مرثد غنوي رضی الله عنه څخه نقل دي هغه وایي: رسول الله ﷺ فرمایلي دي: په قبرونو مه کښېنئ او مه ورته مونځ کوئ.

علامه ابن القیم: د ثقیف د کیسې په فایدو کې وایي: **(ومنها أنه لا يجوز إبقاء مواضع الشرك والطواغيت بعد القدرة على هدمها وإبطالها يوماً واحداً فإنها شعائر الكفر والشرك وهي أعظم المنكرات فلا يجوز الإقرار عليها مع القدرة البتة)**، [زاد المعاد ج ۳ ص ۵۰۶].

ژباړه: او ځینې له دغو ګټو څخه دا دي چې شرکي او طاغوتي ځایونه د یوې ورځې لپاره هم پرېښودل جائز نه دي وروسته له هغې چې په ورانولو او ختمولو یې قادر شوې؛ ځکه چې دا د کفر او د شرک نښې دي او ډېر لوی منکر دی، نو له قدرت لرلو سره یې هېڅکله پرېښودل جائز نه دي.

دا د هغو قبرونو او مزارونو حکم دی کوم چې د شریعت خلاف جوړ شوي وي او یا هم د شرک او

ګمراهۍ مراکز ګرځېدلي وي باید چې ونړول شي.
نو ملېشو ته وایو چې تاسې دغه د ماربلو د موټرو لوی کاروان د څه لپاره روان کړی، دا کار خو په قبرونو د آبادۍ او د هغې د چونه کولو او ډولي کولو مرادف ګڼل کېږي او په قبرونو آبادي جوړول، چونه کول یې او رنګول یې منعه شوي دي، صحیح مسلم کې په کتاب الجنائز کې په (١٦١٦) نمبر روایت کې راځي، جابر رضی الله عنه فرمایي: (**نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ ، وَأَنْ يُقْعَدَ عَلَيْهِ ، وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهِ**)، [رواه مسلم]
ژباړه: رسول الله ﷺ منع فرمایلې ده له دې څخه چې قبر چونه کړای شي او له دې څخه چې ناسته پرې وکړای شي او له دې څخه چې آبادي ورباندې جوړه کړای شي.
او د نسائي په روایت کې راځي چې أَوْ يُكْتَبَ عَلَيْهِ او له دې څخه یې منعه کړې چې لیکل دې ورباندې وکړای شي.
د رب العالمین په رالېږلي شریعت کې د پوره کوښښ مصروفولو باوجود دې څوک یو روایت داسې پیدا کړي، چې له هغې څخه دا ثابتېږي، چې قبرونو ته نږدې دې د چایو یو خړه بوجۍ واچول شي، رنګارنګ قالینونه خو لا اخوا پرېږده، دغه کاروانه خو نه د رسول الله ﷺ د قبر سره کوم صحابي کړي او نه د کوم صحابي له قبر سره کوم تابعي کړي او نه د کوم تابعي د قبر سره تبع تابعي یا محدث یا کوم امام او فقیه کړي دي، بلکې دا خو ډېر وروسته مشرکو روافضو او د تصوف ملحدینو د ځینې غربي کفارو په اشارو سره د مسلمانانو په معاشره کې د قبر پرستۍ د ترویج لپاره د قبرونو دغه ډول سینګار او تزیین پیل کړ، ترڅو دخلکو زړونو ته د دې قبرونو ناروا تعظیم وردننه باسي.
په قبرونو له دې ډول مېلو څخه رسول الله ﷺ پناه غوښتې ده، په موطأ د امام مالک رحمه الله کې روایت دی، فرمایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي: (**اللَّهُمَّ لاَ تَجْعَلْ قَبْرِي وَثَنًا يُعْبَدُ ، اشْتَدَّ غَضَبُ اللَّهِ عَلَى قَوْمٍ اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ**)، [موطأ للامام المالك]
ژباړه: اې الله زما قبر بُت مه ګرځوه چې عبادت یې وکړای شي، د الله تعالی غضب دې سخت شي په هغه قوم چې د أنبیاؤ قبرونه یې د لمونځ کولو ځایونه ګرځولي دي.
نو مسلمانان دې دېته وګوري او سوچ دې پرې وکړي چې د قبر په خوا کې عبادت کول آیا دا د دې قبر یا مقبور عبادت نه دی؟



که نه دی نو دومره غیر شرعي تعظیم یې ولې کېږي چې د دې عمل له وجې بیا دا قبر خلکو ته په منزله د بت ګرځي، او حیرانوونکې خو دا ده چې دغه ډول کار د أنبیاء علیهم السلام د قبرونو سره د رب د غضب سبب ګرځي، نو د ملاعمر په قبر چې دا کوم رش جوړ دی او دلته خلک لمونځونه کوي، نذر ونیاز او منښتې ورته وړاندې کوي، دا به څنګه د دې وعید لاندې داخل نه وي؟!



دا به څنګه د رب د غضب سبب نه ګرځي؟!

د أنبیاء علیهم السلام د قبرونو سره که دا کار وشي، رب دې پرې غضب کوي، رسول الله ﷺ دې ورته ښېرا کوي، خو د ملاعمر د قبر سره بیا هېڅ ستونزه نشته! او همدا راز د امام بخاري رحمه الله په قبر د ودانۍ د جوړولو او ترمیمولو لپاره له یو هېواده بل هېواد ته ماربل انتقالول او دومره لوړ مصارف پرې کول، نو آیا دا عمل به د رسول الله ﷺ د دې وعید لاندې داخل نه وي؟!

آیا دا عمل به د رب د غضب سبب نه ګرځي؟!

آیا دا عمل به شرعاً کوم محظور ونه لري؟

که نن امارتیان له دې څخه انکار کوي او دا بده ګڼي، چې دوی دې د قبرونو عبادت ته منسوب شي، نو دغه ډول انکار پرون د دوی مخکنیو مشرکانو ورونو هم کاوه، الله تعالی مونږ ته د هغوی د دې انکار په تړاو په سورَةُ الزُّمَر (۳) نمبر آیت کریمه کې فرمایي: {أَلَا لِلَّهِ الدِّينُ الْخَالِصُ وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَىٰ إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِي مَا هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ كَاذِبٌ كَفَّارٌ}

ژباړه: خبردار شئ! خاص د الله لپاره خالص دین دی، او هغه کسان چې له هغه نه غیر یې دوستان (کارسازي) نیولي دي (او خپل دغه عمل داسې توجیه کوي چې) مونږ د دوی عبادت نه کوو مګر د دې لپاره چې دوی مونږ الله ته نږدې کړي، ښه نږدې کولو سره، بېشکه الله به د دوی په مینځ کې په هغو خبرو کې فیصله کوي چې دوی په هغو کې اختلاف کوي، بېشکه الله هدایت نه کوي هغه چا ته چې هغه دروغجن او ډېر ناشکره وي.

نو مسلمانانو ورونو ښه وګورئ رب د دوی دغه

ناروا واسطې او د ځان نه جوړې شوې وسیلې نیولو ته عیناً د هغوی د عبادت نوم ورکړی دی، اګر چې هغوی په خوله دا هم ویل چې مونږ د دوی عبادت نه کوو خو رب یې په حق کې دغه بې ځایه غلو او ممنوع تعظیم د هغوی په عبادت سره تعبیر کړ!

نو نن که یو کتونکی د امارتي ملېشو د حرام تعظیم او په بې اساسه مراقبو بوخت حال وګوري، کوم چې دوی په داسې ځانګړو مراسمو د امام بخاري رحمه اللّٰه زیارت کې کوي، بعینه دا د نوح علیه السلام د مشرک قوم د هغه کړني او عمل په څېر دی؛ کوم چې هغوی به د خپلو مشرانو د مجسمو سره کول.

بل خوا د الله رب العالمین په رالېږلي محمدي شریعت کې مړو او قبرونو ته د قرآن لوستل هم ثابت نه دي، د امت د جیِّدو فقهاؤ د فتاواؤ له مخې دا کار بدعت او ناروا دی بل دا چې دوی د حنفي مسلک دعوا هم کوي او حال دا چې امام ابوحنیفه رحمه الله د قبر سره قرآن لوستل مکروه ګڼلي دي کما فی فقه السنة ۱/۵۵۹.

او همداراز له مخکې چې وویل شول رسول اللّٰه ﷺ په قبر آبادي جوړول، د هغه چونه کول او په هغې لیکل منعه کړي دي، [کما فی صحیح مسلم کتاب الجنائز د حدیث شماره: ١٦١٦]

خو طالب مشرکین د رسول اللّٰه ﷺ د دې نهي هېڅ پروا نه کوي بلکې د دې په ضد او عکس یې دغه ممنوع امور ټول په عمل کې راوستي دي (إنا لله وإنا إلیه راجعون)

رسول اللّٰه ﷺ هغه چاته چې د قبر نه بت جوړوي، د رب العالمین لخوا د غضب د نازلېدو ښېرا کړې ده.

رسول اللّٰه ﷺ په قبرونو عبادت ځایونه جوړول د یهودو او نصاراؤ عمل بللی دی، او هغوی ته یې په دې کار د هلاکت ښېرا کړې ده. [کما في موطأ للامام مالک د حدیث شماره: ۱۵۸۸ او صحیح البخاری د حدیث شماره: ۴۲۱]

رسول اللّٰه ﷺ له قبرونو څخه د عبادت ځایونو په جوړوونکو خلکو د الله تعالی د لعنت غوښتنه کړې ده. [کما في البخاري د حدیث شماره: ۱۲۵۰]

خو ملېشو د دې لعنت څخه هېڅ وېره او خوف ونه کړ او همغسې د قبرونو او زیارتونو اړوند د رسول اللّٰه ﷺ د ارشاداتو مخالفت کوي، حالانکې دا ډول ناروا کړنې رسول اللّٰه ﷺ د اللّٰه تعالی د لعنت سبب ګرځولې دي، د احادیثو د نورو کتابونو په شمول د صحیحَینو روایات هم په دې باب کې موجود دي، خو ملېشې لکه له سره چې د دې لعنت څخه خوف نه لري، رسول اللّٰه ﷺ به د اوچتو قبرونو او مجسمو د ړنګولو لپاره صحابهٔ کرام لېږل، او صحابهٔ کرامو بیا تابعین د همدې کار لپاره لېږل، لکه مخکې د مسلم په حواله د علي رضی الله عنه روایت تېر شو [صحیح مسلم کتاب الجنائز باب الأمر بتسویة القبر د حدیث شماره: ١٦١٥]

خو افسوس چې نن امارت وطني په خپله قبرونه اوچتوي او د مجسمو ساتنه او حفاظت کوي او د وطن اثاثي یې ګڼي.

او دا یوه خبره هم اړینه ګڼو چې امام بخاري چې ملېشې یې د قبر او مزار تعظیم ته له افغانستانه تر ازبکستانه په داسې کتارونو او شور او شغب کې ځي همدغه ملېشې د دیوبندي منحرفې عقیدې په اساس د امام بخاري په استناد رارسېدلي ډېری احادیث ډېر په سپین سترګی ردوي او هم د امام بخاري او هم د

دین د نورو امامانو د ډېرى عقایدو مخالف دي او له راوړو احادیثو څخه یې ډول ډول ځوابونه کوي، کله یې د أخبار آحادو په پلمه ردوي، کله یې د قرآن د آیت سره په تعارض ردوي، کله یې د حنفي فقهي د خلاف له امله ردوي او کله یې د نسخې په بې ثبوته دعوو ردوي او داسې نور چې د اړتیا په وخت یې بې شماره مثالونه وړاندې کولی شو ان شاء الله، خو بل لورې ته یې د قبر تعظیم کوي او خوا کې یې مراقبې کوي او د ترمیم چارې یې پر مخ وړي، دا دلیل دی چې دوی له امام بخاري سره مینه نه لري او نه یې د احترام قائل دي، بلکې دوی د کانې او لوټې له عبادت سره مینه لري او د خلکو د پام راړولو لپاره خپله دغه مینه د امام بخاري د قبر په احترام سره توجېه کوي که څه هم د قبر دغه احترام حرام دی چې وضاحت یې وشو.

الغرض بې شمېره روایات موجود دي، چې له دا ډول کارونو څخه په شریعت کې په سختۍ سره منعه راغلې ده، د رسول الله ﷺ قبر چې ښکاره نه کړای شو وجه دا وه چې دا عبادتګاه او د مېلو ځای جوړ نه شي، رسول الله ﷺ د ځنکدن په وخت کې د دې کار سخت وعید بیان کړ، ابن عباس رضی الله عنه او مور بي بي عائشه رضی الله عنها دواړه فرمایي: چې رسول الله ﷺ د ځنکدن پرمهال ځکه له دې کار څخه منعه وکړه او په دې کار یې سخت وعید بیان کړ، چې خلک ویار کړي له هغه کار څخه چې یهودو او نصاراؤ د خپلو أنبیاؤ له قبرونو سره کړی ؤ، [کما فی صحیح البخاري کتاب المغازي د حدیث شماره: ۴۱۱۴]

خو د دې هرڅه باوجود دغه خرافاتي او وطني ملېشو له ماربلو څخه لاری ډکې کړې، خېټې یې غوړې کړې، سترګې یې تورې کړې، د ولس څخه د راټولو شویو حرامو مالیاتو څخه یې جیبونه ډک کړل، د زرې موټرونو کتارونه او د ساتونکو کاروانونه یې ځان پسې کړل او د ثواب په نیت د امام بخاري رحمه الله د زیارت کولو او د هغه په قبر د ماربلو لګولو او د نومورې په قبر د ودانۍ د جوړولو په نیت ازبکستان ته لاړل، خو بیا هم مجاهدین دي او بیا هم شیوخ او محدثین دي! دا ډېره عجیبه خبره ده!

په هر صورت ملېشو ته چې آی ایس آی او سي آی اې کومې عینکې (چشمې) وړپه سترګو کړې، نو فکر کوي چې د ټولو خلکو همدا عینکې په سترګو دي، او هرې کیسې او مسئلې ته به د همدوی په چشمو او له همدې زاویې ګوري، خو داسې هېڅکله نه ده، اوس هغه عصر دی چې ټول خلک ستاسې هره کړنه د اسلام د صریحو احکامو په تله تلي او تاسې هېڅکله دا توانایي نه لرئ چې په دې عقلونو او د علم څخه په کنګالو سرونو د اسلامي شریعت معلوم او ښکاره نصوص تغیر او یا تبدیل کړئ او یا یې له خلکو پټ کړئ.

نو له خلکو څخه مو غوښتنه دا ده چې د ملېشو د هرې کړنې د شرعي ارزونې لپاره د اسلامي دولت اعلام ته مراجعه وکړئ او وګورئ او واورئ چې ملېشې د اسلام او مسلمانانو سره په دښمنۍ کې کوم حد ته رسېدلې دي؟!

نو په داسې حال کې په تاسې ټولو لازمه ده چې د دغه نیابتي او خرافاتي ملېشو د نابودۍ لپاره د اسلامي دولت له مجاهدینو سره ملګري شئ او یا هم د خپلې وسې هر ډول مرسته د اسلامي دولت له مجاهدینو څخه ونه سپموئ.

## د خراسان غږ مجلې درنو لوستونکو!

تاسې د مجلې په تېره شپږ دېرشمه 36 ګڼه کې د (جهاد د ښکلا او د فاسدو وطني ډلو ټپلو د زیانونو په اړه لارښوونې) د معلوماتي، علمي، تحقیقاتي سلسلې په دویمه برخه کې د جهاد د اصولو، ضوابطو او شرائطو ترڅنګ د منحرفو ډلو حال ته کتنه او په جهاد او ډیموکراسۍ مدلل او مفصل بحث ولوست اوس د همدې سلسلې په درېیمه برخه کې په یوه بله مهمه موضوع (جهاد او قومیت ـــ وطنیت!) مدلل او په زړه پورې بحث شوی په دې هیله چې دا برخه هم له پیله تر پایه تعقیب کړئ او تر نورو یې ورسوئ.

## جهاد او قومیت - وطنیت!

بل له هغو ډلو څخه چې د جهاد یا سیاسي انقلاب په نوم راپورته شوې دي او جنګیږي، قومپرست او وطنپرسته ډلې دي، دا هغه ډلې دي چې د قومیت او وطنیت عقیده لري، د قوم او وطن تړو ته ژمن دي، د اسلامي ارزښتونو پر ځای ملي او وطني ارزښتونو ته اولویت ورکوي، د خاورې دفاع ته اولویت ورکوي، قومي او وطني ورور ګلوی ته په اسلامي ورور ګلوی اولویت ورکوي، د قوم او وطن لپاره ولاء او براء (دوستي او دښمني) کوي، د قوم او وطن شعارونه زمزمه کوي او د مبارزې اصلي عامل یې قوم او وطن وي، نو آیا داسې خلک د الله د لارې مجاهدین کېدای شي؟ د دوی دغه مبارزه شرعي جهاد بلل کېدای شي او که نه؟ د دې د ځواب لپاره مخکې د قومیت او وطنیت شرعي حیثیت او حکم ذکر کول اړین دي، نو وایو:

## په اسلام کې د وطنیت او قومیت حکم!

که څه هم د قوم او وطن سره مینه فطري ده چې انکار ورڅخه نشي کېدای خو دغه مینه چې کله د الله او د هغه د رسول ﷺ په مینه له پاسه شي په دې توګه چې قومي او وطني ارزښتونو او اساساتو ته په اسلامي ارزښتونو او اساساتو ترجېح ورکړل شي، د ولاء او براء عقیده په کې له منځه لاړه شي، مرتدین په کې په قومي او وطني ورونو سره ونومول شي، د مسلمانانو ترمینځ په ژبې، سمت او وطني کرښو جدایي راشي، اسلامي خواخوږي په وطني او قومي خواخوږۍ بدله شي، د مرتدینو په مقابل کې سپېڅلي جهاد ته د ورور وژنې نوم ورکړې شي او داسې نور، نو دا ډول مینه د قوم او وطن سره حرامه او د قومپرستۍ او وطنپرستۍ تر عنوان لاندې راځي چې په شریعت کې حرامه او د ډېرو نصوصو سره په ټکر کې ده، چې ځینې یې په لاندې ډول دي، الله تعالی فرمايي: {إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ}، [الحجرات:۱۰]

ژباړه: مؤمنان سره ورونه دي، خو ملتپرستي او وطنپرستي د اسلامي اخوت سره په ټکر کې ده، بل ځای کې الله تعالی فرمايي: {يَٰٓأَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَٰكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَجَعَلْنَٰكُمْ شُعُوبًا وَقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوٓا۟ - إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَىٰكُمْ - إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ}، [سُورَةُ الحُجرَات : ١٣]

ژباړه: اې خلکو! بېشکه مونږ تاسو له یوه سړي او له یوې ښځې پیدا کړي یئ او مونږ تاسو څانګې

او قبیلې ګرځولې یئ، د دې لپاره چې تاسو یو بل سره وپېژنئ، بېشکه د الله په نزد په تاسو کې ډېر عزتمن، ستاسو زيات پرهېزګار دی، بېشکه الله ښه پوه، ښه خبردار دی.

خو ملتپالنه او وطنپرستي د حقيقي تقوی سره په ټکر کې دي، څکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (يا أيها الناس، ألا إن ربكم واحد وإن أباكم واحد، ألا لا فضل لعربي على عجمي، ولا لعجمي على عربي، ولا أحمر على أسود، ولا أسود على أحمر، إلا بالتقوى)، [رواه أحمد في مسنده د حديث شماره: ۲۳٤۸۹]

ژباړه: اې خلکو! خبردار، ستاسو رب يو دی، پلار آدم عليه السلام مو يو دی، خبردار! د عربي په عجمي او د عجمي په عربي هېڅ غوره والی نشته او نه سور په تور او نه تور په سور څه غوره والی لري پرته له تقوی څخه.

خو په ملتپالنه او وطنپرستۍ کې د تقوی معيار مات دی، په حديث د بخاري کې راغلي دي چې صحابه کرام يوې غزا ته وتلي وو نو د دوه صحابوو خپل مينځ کې جنګ شو، هر يو خپل قوم ته آواز وکړ انصاري انصارو ته او مهاجر مهاجرينو ته آواز وکړ، رسول الله ﷺ چې کله خبر شو نو وې فرمايل: (ما بَالُ دَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ؟ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَسَعَ رَجُلٌ مِنْ الْمُهَاجِرِينَ رَجُلًا مِنْ الْأَنْصَارِ فَقَالَ : دَعُوهَا فَإِنَّهَا مُنْتِنَةٌ)، [رواه البخاري: ٤٩٠٥]

ژباړه: څنګه د جاهليت آوازونه کوئ؟ صحابوو وويل: اې د الله رسوله، يو مهاجر يو انصار د شا نه په لغته وواهه، رسول الله ﷺ وفرمايل: دا چغې پرېږدئ دا بد بويه دي.

نو ملتپالنه او وطنپرستي د جاهليت چيغه ده، امام نووي رحمه الله: د مخکې حديث په شرحه کې ليکي: (وَأَمَّا تَسْمِيَته صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَلِكَ دَعْوَى الْجَاهِلِيَّة فَهُوَ كَرَاهَة مِنْهُ لِذَلِكَ؛ فَإِنَّهُ مِمَّا كَانَتْ عَلَيْهِ الْجَاهِلِيَّة مِنْ التَّعَاضُد بِالْقَبَائِلِ فِي أُمُور الدُّنْيَا وَمُتَعَلَّقَاتهَا، وَكَانَتْ الْجَاهِلِيَّة تَأْخُذ حُقُوقهَا بِالْعَصَبَاتِ وَالْقَبَائِلِ فَجَاءَ الْإِسْلَام بِإِبْطَالِ ذَلِكَ وَفَصَلَ الْقَضَايَا بِالْأَحْكَامِ الشَّرْعِيَّة اهـ)، [شرح المسلم]

ژباړه: هر چې نبي ﷺ دې ته د جاهليت چيغه وويله، نو دا يې د دغه کار بد ګڼلو له وجې ويلي دي، څکه جاهليت والاؤ به د دنيا په کارونو کې په قبيلو سره مرسته حاصلوله او جاهليت والاؤ به خپل حقونه په خپلو عصبه او قبيلو سره اخيستل نو اسلام دا هر څه باطل کړل او مسئلې يې په شرعي احکامو فيصله کړې.

نو د قومپرستۍ او وطنپرستۍ په لاره کې وژل شوي کسان د جاهليت په مرګ مړه دي لکه په حديث د جندب بن عبد الله البجلي رضي الله عنه کې دي: چې نبي ﷺ فرمايلي دي: (مَنْ قُتِلَ تَحْتَ رَايَةٍ عِمِّيَّةٍ يَدْعُو عَصَبِيَّةً أَوْ يَنْصُرُ عَصَبِيَّةً فَقِتْلَةٌ جَاهِلِيَّةٌ)، [رواه مسلم: ۱۸۵۰]

ژباړه: څوک چې د ړوند بيرغ لاندې ووژل شو چې عصبيت ته يې خلک رابلل يا يې د عصبيت مرسته کوله نو مرګ يې د جاهليت دی.

قومپرستي او وطنپرستي لوی طاغوت دی چې د الله نه سيوا يې عبادت کېږي او دا په دې توګه چې په قومپرستۍ او وطنپرستۍ کې ډېری شرعي حدودات مات شوي او تر پښو لاندې شوي لکه د ولاء او براء عقيده په کې له منځه تللې ده، کفارو او

مرتدینو سره په کې دوستانه اړیکو ته لاره خلاصه شوې ده، د شریعت تعطیل ته په کې لاره خلاصه شوې ده، د قومي او وطني تړو او فیصلو تطبیق ته په کې لاره خلاصه شوې، هر ډول شرک، کفر، بې دیني چې قومي او وطني ګټو ته په کې زیان نه وي لاره ورته خلاصه شوې ده، نو په همدې اساس د طاغوت تعریف پرې تطبیقیږي، د طاغوت تعریف شیخ الإسلام ابن قیم رحمه اللّٰه داسې کړی:

(كل ما تجاوز به العبد حده من معبود أو متبوع أو مطاع)، [إعلام الموقعين: ١/٥٠]

ژباړه: هر هغه څه چې بنده په کې د خپل مشروع حد نه تجاوز وکړي که معبود وي، که متبوع وي او که مطاع وي (طاغوت ورته ویل کیږي).

نو قوم او وطن هم د وطنپرستو او قومپرستو له پاره معبود، متبوع او مطاع ګرځېدلی چې له امله یې د ډېری مشروع حدونو څخه تجاوز کوي او د اسلام اساسات ړنګوي، لکه څنګه چې مخکې ورته اشاره وشوه، که د قومپرستو او وطنپرستو خبرو ته پاملرنه وشي نو ډېری داسې خبرې ترې نقل دي، چې هغه بالذات د اسلام سره په ټکر کې دي، څکه دوی داسې عقیده لري ګواکې رسول اللّٰه ﷺ د قومپرستۍ او وطنپرستۍ لپاره مبعوث شوی دی ـ والعیاذ بالله ـ نو معلومه شوه چې قومپرستي او وطنپرستي په اسلام کې ځای نه لري بلکې دا د دې زماني یو طاغوت دی چې له امله یې ډېری خلک ګمراه شوي دي او له اسلام څخه مرتد شوي دي، دوی ته پکار ده چې له خپلې ګمراهۍ څخه توبه اوباسي او د الله تعالی دین ته راوګرځي.

دا خو د قومپرستۍ او وطنپرستۍ شرعي حیثیت او حکم شو، له دې څخه مونږ دې نتیجې ته ورسېدو چې ملتپالي او وطنپرسته ډلې که څه هم د جهاد دعوه کوي، خو دوی مجاهدین نشي کېدای، د دوی مبارزه د الله په لاره کې نه ده، د الله د کلیمې د لوړولو لپاره نه ده، بلکې د قوم او وطن د کلیمې د لوړولو لپاره ده، د قومیت او وطنیت د جاهلي نعرو د بېرته راګرځولو لپاره ده چې دا کار د شرعي جهاد د مفهوم خلاف دی، همداراز د جهاد د اهدافو خلاف او هم یې د اصولو خلاف دی، اللّٰه تعالی فرمایي: (أَفَحُكْمَ الجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَن أَحسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكما لقوم يُوقِنُونَ)، [المائدة: ٥٠]

ژباړه: آیا د جاهلیت فیصلې غواړي؟ او څوک دی ډېر ښائسته د الله نه په فیصله کولو کې د پاره د هغه قوم چې یقین کوي.

د دې آیت په تفسیر کې امام ابن کثیر رحمه اللّٰه ویلي دي: (ينكر تعالى على من خرج عن حكم الله المحكم المشتمل على كل خير، الناهي عن كل شر وعدل إلى ما سواه من الآراء والأهواء والاصطلاحات التي وضعها الرجال بلا مستند من شريعة الله، كما كان أهل الجاهلية يحكمون به من الضلالات والجهالات مما يضعونها بآرائهم وأهوائهم، وكما يحكم به التتار من السياسات الملكية المأخوذة عن ملكهم جنكزخان الذي وضع لهم الياسق، وهو عبارة عن كتاب مجموع من أحكام قد اقتبسها من شرائع شتى: من اليهودية والنصرانية والملة الإسلامية وغيرها، وفيها كثير من الأحكام أخذها من مجرد نظره وهواه، فصارت في بينه شرعا متبعا يقدمونه على الحكم بكتاب الله وسنة رسول اللّٰه ﷺ فمن

فعل ذلك منهم فهو كافر يجب قتاله حتى يرجع إلى حكم الله ورسوله، فلا يحكم سواه في قليل ولا كثير، ا.هـ)، [تفسير ابن كثير ۳/ ۱۱۹]

ژباړه: اللّٰه تعالی د هغه چا بدي بیانوي څوک چې د اللّٰه له هغه واضح حکم څخه وځي چې په هر خیر مشتمل دی، له هر شر څخه منع کوونکی دی، او له دې څخه پرته نورو هغو نظریو، خواهشاتو او اصطلاح ګانو ته ورکوړ شي کوم چې خلکو پرته له شرعي دلیل څخه جوړې کړې دي، لکه څنګه چې به د جاهلیت د زماني خلکو په هغو ګمراهیو او جهالتونو فیصلې کولې کوم چې به دوی په خپلو رأیو او خواهشاتو سره جوړې کړې وې او لکه څنګه چې به تاتاریانو په خپل هغه پاچاهي سیاست فیصله کوله چې د الیاسق قانون جوړونکي پاچا چنګیز خان له قانون څخه را اخیستل شوی ؤ، یاد قانون چې (الیاسق) نومېده؛ عبارت ؤ له یو داسې کتاب څخه چې د مختلفو شریعتونو احکام په کې راجمع وو؛ لکه یهودیت، نصرانیت، اسلام او نورو شریعتونو څخه، او په دې کې ډېری داسې حکمونه هم وو چې سوچه یې له خپل نظر او خواهش څخه را اخیستي وو، دغه قانون د هغوی تر منځ د یو منل شوي شریعت په توګه عملي کېده؛ چې د اللّٰه تعالی د کتاب او د رسول اللّٰه ﷺ پر فیصلو یې همدې قانون ته اولویت ورکاوه، نو له دوی څخه چې کومو خلکو دا کار وکړ هغه کافر او مرتد دي، جنګ ورسره تر هغه وخته واجب دی، ترڅو چې د اللّٰه تعالی او د هغه د رسول ﷺ فیصلې ته نه وي راګرځېدلي، د اللّٰه له قانون پرته بل قانون به په وړه او غټه مسله کې نه حاکموي.

د امام ابن کثیر رحمه اللّٰه دا فتوه د دې زماني په قومي او وطني ګوندونو باندې پوره تطبیق ده، د دوی هم ټوله مبارزه د قومي او وطني جاهلیت لپاره ده، نه داسلام لپاره.

**په قومي او وطني ګوندونو کې د اسلام ډېری نواقض شتون لري چې ځینې یې په لاندې ډول دي:**

## لومړی ناقض:

دوی د شریعت په خلاف د خپلو مشرانو وضعه کړې قومي او وطني تړو ته ژمن دي، هغه چې منل یې شرک دی، ځکه چې د الله سره د حاکمیت په صفت کې برخه دار جوړول دي چې په اړه یې مخکې دلائل ذکر شول.

## دویم ناقض:

دوی د هغه چا چې په قوم او وطن کې ورسره شریک وي که څه هم بواح کفر ترې صادر شوی وي چې اسباب د کفر په کې موجود او موانع یې منتفي وي تکفیر یې نه کوي، بلکې په قومي او وطني ورونډو سره یې مخاطب کوي، لکه روافض، سیکولران او د شرکي تصوف والا پیران، په داسې حال کې چې پورتني خو داسې نواقض دي چې انکار ورڅخه نشي کېدای ځکه د سلفو په آند د تکفیر په قواعدو کې یوه مسلمه او منل شوې قاعده دا هم ده، چې هغوی یې په دې الفاظو سره ذکر کوي: (من لم یکفر المشرکین أو شک في کفرهم او صحح مذهبهم، کفر اجماعاً).

ژباړه: څوک چې د مشرکینو تکفیر ونکړي، یا یې په

کفر کې شک وکړي او یا یې عقیده صحیح وبولي، نو په اجماع سره کافر کېږي.

که څه هم په دې قاعده کې تفصیل شته، على الإطلاق نه ده، خو څوک چې د اصلي کافر او یا د هغه مرتدینو تکفیر نه کوي چې کفر یې ښکاره او یقیني وي او د دین له ضروریاتو څخه په ښکاره ډول منکر وي، او نوموړی پرې علم هم ولري، نو د داسې کس په اړه دا قاعده متفق علیه ده.

قاضي عیاض د هغه چا په کفر اجماع نقل کړې چې د بې دینو لکه یهودو، نصاراوو، مجوسو او نورو تکفیر نه کوي، نوموړی وایي: (الإجماع على كفر من لم يكفر أحداً من النصارى واليهود، وكل من فارق دين المسلمين، أو وقف في تكفيرهم أو شك)، [الشفا ۲/ ۲۸۱]

ژباړه: د هغه چا په کفر اجماع ده چې له نصاراؤ او یهودو څخه کومې ډلې ته کافر نه وایي او هغه چاته کافر نه وایي چې د مسلمانانو له دین څخه جدا وي، یا یې په تکفیر کې چوپ پاتې کېږي یا یې په کفر کې شک کوي.

همدارنګه په یو بل ځای کې وایي: (ولهذا نكفر من لم يكفر من دان بغير ملة الإسلام من الملل أو وقف فيهم أو شك أو صحح مذهبهم وإن أظهر مع ذلك الإسلام واعتقده واعتقد إبطال كل مذهب سواه فهو كافر بإظهاره ما أظهر من خلاف ذلك)، [الشفا ۲ / ٦١٠]

ژباړه: او له دې امله مونږ د هغه چا تکفیر کوو څوک چې د اسلام پرته د بل ملت تابعداري کوونکي نه تکفیروي یا د هغوی له تکفیر څخه چوپ پاتې کېږي یا (د هغوی په کفر کې) شک کوي یا د هغوی مذهب ته صحیح وایي، که څه هم په دې حال کې اسلام راڅرګند کړي او اسلامي عقیده ولري او له اسلام پرته بل هر مذهب باطل وګڼي نو دا به کافر وي په سبب د ښکاره کولو د نوموړي هغه څه چې د اسلام تکذیب او انکار ترې لازمېږي.

شیخ سلیمان بن عبدالله بن محمد بن عبدالوهاب د هغه چا په اړه چې کفر یې یقیني ثابت وي او څوک یې تکفیر نه کوي؛ ویلي دي: (فإن كان شاكاً في كفرهم أو جاهلاً بكفرهم بينت له الأدلة من كتاب الله وسنة رسوله ﷺ على كفرهم، فإن شك بعد ذلك وتردد فإنه كافر بإجماع العلماء، على من شك في كفر الكافر فهو كافر)، [انظر رسالة أوثق عرى الإيمان صـ ٦١]

ژباړه: که چېرې د دوی په کفر کې شکي وي یا یې له کفر څخه ناخبره وي؛ د دوی د کفر په اړه به ورته له کتاب او سنت څخه دلایل بیان شي، که چېرې یې له دې وروسته (د دوی په کفر کې) شک وکړ نو د علماؤ په اجماع سره به کافر وي، د دې قاعدې په اساس چې څوک د کافر په کفر کې شک وکړي هغه به کافر وي.

سلفو په ډېرو ځایونو کې د هغه چا تکفیر کړی څوک چې د هغه چا تکفیر نه کوي چې کفر یې ښکاره او یقیني وي او له حال څخه یې خبر وي، شیخ الاسلام ابن تیمیه د دروز ډلې په اړه وایي: (كُفْرُ هَؤُلَاءِ مِمَّا لَا يَخْتَلِفُ فِيهِ الْمُسْلِمُونَ؛ بَلْ مَنْ شَكَّ فِي كُفْرِهِمْ فَهُوَ كَافِرٌ مِثْلُهُمْ)، [مجموع الفتاوى ۳ /۱٦۲]

ژباړه: د دې خلکو په کفر کې مسلمانان اختلاف نه لري بلکې چا چې د دوی په کفر کې شک وکړ هغه

به د هغوی په څېر کافر وي.

د ابن عربي ډله علماؤ تکفیر کړې ده او بیا یې ویلي دي: (من شك في كفر طائفة ابن عربي فهو كافر. أهـ)، [الدرر السنية ۹ /٤٢٣]

ژباړه: چا چې د ابن عربي زندیق د ډلې په کفر کې شک وکړ هغوی هم کافر دي.

همداراز سلفو د ډېرو باطلو ډلو او خلکو تکفیر کړی دی او بیا یې ویلي دي چا چې د دوی تکفیر ونکړ یا یې ورله په کفر کې شک وکړ هغه به هم کافر وي.

الغرض د قومي او وطني ډلو د تکفیر دویم لامل همدا دی چې دوی د اتفاقي مرتدینو تکفیر هم نه کوي بلکې د وطني او قومي شعارونو له امله یې خپل ورونه ګڼي.

## درېیم ناقض:

قومي او وطني ډلې خپلې قومي او وطني ترې او فیصلې د الله او د هغه د رسول ﷺ د فیصلو نه پوره او ښائسته ګڼي چې دا لوی کفر دی، اللّٰه تعالی فرمايي: (الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا)، [سُورَةُ المائدة:٣]

ژباړه: نن ما ستاسې دین، ستاسې لپاره بشپړ کړ او خپل نعمت مې پر تاسې پوره کړ او ستاسې لپاره مې اسلام ستاسې د دین په توګه منظور کړ.

نو د الله دین پوره هم دی چې د ژوند ټولې چارې په کې حل شوې دي او ښائسته هم دی، فیصلې او حکمونه یې د روغ فطرت او مزاج سره برابر دي او د ټولنې د اصلاح لپاره مناسب دي خو قومي او وطني ډلې د الله دین نیمګړی ګڼي، فیصلې یې د دې زماني سره مناسبې نه ګڼي نو ځکه خو پرې خپلې قومي او وطني ترې او فیصلې له پاسه کوي او د الله شریعت شا ته کوي.

## څلورم ناقض:

ډېری قومي او وطني ډلې د کفارو او مرتدینو سره د مسلمانانو په خلاف همکارې دي، او له هغوی سره په فزیکي او فکري توګه مرستندویه دي، چې دا هم د اسلام له نظره لوی کفر دی، اللّٰه تعالی فرمايي: (لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللهِ فِي شَيْءٍ)، [سُورَةُ آلِ عِمران: ٢٨]

ژباړه: مؤمنان دې هېڅکله داسې نه کوي چې مؤمنان پرېږدي او له کافرانو سره ملګرتیا او دوستي وکړي، څوک چې داسې چلند وکړي، د هغه له الله سره هېڅ اړیکه نشته.

امام ابن جریر الطبري رحمه اللّٰه د {فَلَيْسَ مِنَ اللهِ فِي شَيْءٍ} په تفسیر کې وايي: يعني بذلك؛ فقد برئ من الله، وبرئ اللهُ منه، بارتداده عن دينه، ودخوله في الكفر.

ژباړه: په دې سره یې مقصد دا دی چې دغه انسان له الله څخه بېزاره شو او الله له ده څخه بېزاره شو له دې وجې چې د الله له دین څخه مرتد شو او په کفر کې داخل شو.

## پنځم ناقض:

قومي او وطني ډلې د اعراض په کفر کې اخته دي، په دې توګه چې د اسلام اساسي احکام یې پرېښي دي لکه کفر، شرک، نفاق، د اسلام نواقض، موالات

معادات او داسې نور... ؛ نه یې زده کوي او نه وربانديې عمل کوي، که څه هم اعراض جزئي کفر اکبر نه دی، مګر اعراض کلّي کفر اکبر دی، چې د دې ناقض دلائل مخکې د یوه بل عنوان په ضمن کې ذکر شول.

### شپږم ناقض:

قومي او وطني ډلې د الله تعالی د شریعت سره کینه لري او هېڅکله نه غواړي چې د الله تعالی شریعت حاکم شي، چې دا هم لوی کفر دی الله تعالی فرمايي: (وَالَّذِينَ كَفَرُوا فَتَعْسًا لَّهُمْ وَأَضَلَّ أَعْمَٰلَهُمْ؛ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَرِهُوا مَآ أَنزَلَ اللَّهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَٰلَهُمْ)، [سُورَةُ محَمَّد: ۹-۸]

ژباړه: هغه کسان چې کافران شوي دي، د هغوی لپاره هلاکت دی او الله د هغو عملونه ضایع کړي دي؛ ځکه چې هغوی د الله نازل کړي احکام بد وګڼل نو عملونه یې ورله برباد کړل.

د کفر نور وجوهات یې په لاندې ډول دي:

### اووم ناقض:

قومي او وطني ډلې د طائفه ممتنعه په حکم کې داخلې دي، ځکه چې سره له قوت او توان لرلو په خپله هم په شرعي احکامو عمل نه کوي او بل خوک هم په شرعي احکامو له عمل کولو څخه د ټوپک په زور منعه کوي، یعنې کوم خلک چې د شرعي احکامو د تطبیق اراده لري د هغوی سره جنګېږي، د داسې خلکو د کفر په اړه د صحابوو اجماع موجود ده چې مانعینو د زکات ته یې مرتدین ویلي وو او په اړه یې د شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله وینا مخکې ذکر شوه.

### اتم ناقض:

د کفر بله وجه یې دا ده چې دوی کې د ایمان اساسي شرط نشته چې کفر بالطاغوت نومېږي، ځکه چې د ځمکې په سر ډېری طواغیت یې منلي دي او د هغوی په نرخونو او تړو راضي شوي دي، الله تعالی فرمايي: (فَمَن يَكْفُرْ بِالطَّٰغُوتِ وَيُؤْمِن بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ لَا انفِصَامَ لَهَا ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ)، [سُورَةُ البَقَرَة : ٢٥٦]

ژباړه: اوس چې څوک له کوم طاغوت څخه منکر شي او پر الله ایمان راوړي، هغه یوه داسې کلکه اسره ونیوله، چې هېڅکله ماتېدونکې نده، او الله د هر څه اورېدونکی او پر هر څه پوهېدونکی دی.

او د ایمان ځینې نور شرطونه هم په کې نشته لکه قبول (قبلول) چې ضد یې رد او نه منل راځي، دا شرط هم په دوی کې نشته ځکه د اسلام ډېری احکام یې ناخوښ ګڼلي، او انقیاد (غاړه ایښودل) چې ضد یې ترک یعنې پرېښودل راځي، دا هم په کې نشته ځکه د اسلام ډېری احکام یې له عمل څخه وروسته کړي دي، حال دا چې علماؤ دغه شرطونه د ایمان د صحیحوالي لپاره یا هم ابتداءً او یا استمراراً شرط ګرځولي دي.

په همدې تړاو حافظ ابن حجر رحمه الله د دې حدیث په شرح کې چې نبي ﷺ فرمایلي دي: (أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ...) [مسند أحمد: ٨٣٤٠]، ویلي دي: ومن

الحديث نعرف أن العبد إذا قال لا إله إلا الله، يُعصَمُ ماله ودمه، وهل يصير بذلك مسلما؟ الراجح لا، حتى يُنظر في التزامه بأحكام الشريعة.ا.هـ. [كما في الفتح ١٢/ ٢٧٩]

ژباړه: له دې حديث څخه دا فايده معلومېږي چې يو بنده كله لا اله الا الله كلمه ووايي نو مال او وينه يې محفوظ كېږي، خو آيا په دې سره مسلمان ګرځي او كه نه؟ راجحه دا ده چې مسلمان نه ګرځي تر څو ترې د شريعت د احكامو التزام ونه ليدل شي، تر هغې به انتظار كېږي.

او امام بغوي رحمه اللّٰه ويلي دي: (أن العبد إذا تلفظ بالشهادة يجبر على الإلتزام بأحكام الشريعة)

ژباړه: كله چې يو بنده كلمه د شهادت ووايي نو د شريعت د احكامو د پابندۍ په اړه به وربانديې زور كېدلى شي.

حافظ ابن حجر رحمه اللّٰه د امام بغوي رحمه اللّٰه د خبرې په شرحه كې وايي: ويفهم من قوله «يُجبر» أنه إذا لم يلتزم يصير مرتدا. ا.هـ. [فتح الباري]

ژباړه: له دې خبرې څخه «چې زور به وربانديې كېدلى شي»؛ دا معلومېږي چې كه چېرې د شريعت د احكامو پابندي ونكړي نو مرتد به وي.

او شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه اللّٰه په خپله فتاوى [اووم جلد، صـ ٣٩٦] كې ويلي دي: (الإقرار لابد أن يُتضمن التصديقُ والإلتزامُ. ا.هـ.

ژباړه: د اقرار سره د كلمې تصديق او د احكامو پابندي لازمه ده

نو د بحث نتيجه دا شوه چې قومي او وطني ډلې كه په هر ځای او هر هېواد كې وي، كه د جهاد په نوم راپورته شوې وي او كه د انقلاب (قومي آزادۍ) يا په نورو نومونو راپورته شوې وي؛ همداراز كه وسلواله مبارزه كوي او كه سوله ايزه مبارزه كوي، دوی مسلمانان نه دي، او همداراز مبارزې ته يې د جهاد نوم وركول هم صحيح نه دي؛ بلكې دوی ګمراه شوې قومي او وطني ملېشې دي، كلمې او د اسلام او جهاد نعرو ته يې ځكه اعتبار نشته چې په دوی كې د اسلام ډېرې نواقض موجود دي نو ترڅو چې يې په الله صحيح ايمان نه وي راوړی او د قومپرستۍ او وطنپرستۍ له شركي عقيدې څخه يې توبه نه وي ويستلې، تر هغې د دوی يو عمل هم د الله په نزد د قبيلدو وړ نه دی.

**د خراسان غږ مجلې درنو لوستونکو!** تاسې د دیوبندیانو د عقیدوي خرافاتو، شرکیاتو او بدعاتو په اړه د مجلې په تېرو ګڼو کې د یادې علمي، تحقیقاتي او معلوماتي لړۍ تېرې برخې ولوستلې چې تېره دولسمه برخه یې د خراسان غږ مجلې په شپږ دیرشمه 36 ګڼه کې خپره شوه، که مو نه وي لوستلې، نو په دې هیله چې د خراسان غږ مجلې تېرو ګڼو ته هم مراجعه وکړئ او په دې تازه ګڼه کې د همدې سلسلې دیارلسمه برخه درته خپروو.

راځئ ولولئ چې دیوبندیان څوک دي؟

عقیده یې څه ده؟

د دغه خرافاتي پیرانو او بدعتي ګمراهانو له خیالي کیسو او وهمیاتو څخه به تاسې ته په ډاګه شي چې د همدې فکر او مسلک په وده کې بند طالب مرتدین هم د خپلو همدغو اسلافو په لار روان دي څکه یې نو له شریعت څخه ساتېرې او ټوکې جوړې کړې دي او د شریعت هر حکم ته د خپل خواهش او شخصي ګټو په محور کې ګوري.

د چا مشران او د عقیدې بنیاد اېښودونکي چې په دغسې ګمراهیو کې ښکېل وي نو د هغوی په لار او فکر روان مشرکان به خود د همغوی په څېر وي، په دې هیله چې دا معلوماتي سلسله له پیله تعقیب کړئ او راتلونکې برخې یې هم په راتلونکو ګڼو کې ولولئ چې د طالب مشرکینو له عقایدو او شرکیاتو ښه خبر شئ.

## یو بل قتل

دا خلک داسې تصرف لرونکي دي چې له امله یې مرګ هم رامینځته کېدای شي، تاسې د حافظ حسین احمد یوه کیسه چې د اشرف السوانح مصنف ذکر کړې ده چې یو ځل یې چا ته ښېرا وکړه نو هغه ناڅاپه مړ شو، د دې په ځای چې هغه په خپل کرامت خوشحاله شوی وای نو وېرار شو او د لیک په واسطه یې له اشرف علي تهانوي څخه د مسئلې پوښتنه وکړه چې زه خو به د دې په مرګ ګنهګار نه یم؟

اوس د اشرف علي تهانوي ایمان ماتوونکی ځواب واورئ:

اگر آپ میں قوت تصرف ہے اور بد دعا کرتے وقت آپ نے اس قوت سے کام لیا تھا یعنی یہ خیال قصد اور قوت کے ساتھ کیا تھا کہ یہ شخص مرجائے تب تو قتل کا گناہ ہوا۔ [اشرف السوانح ج۱/ص۱۲۵]

ژباړه: که په تا کې د تصرف قوت شتون لري او د

ښېرا په وخت کې تا له هغه قوت څخه کار اخیستی وي یعنې تا دا قصد او اراده کړې وي چې دا سړی مړ شي نو بیا د قتل ګناه دربانديې شته.

دا وواياست چې مولانا قاسم نانوتوي په تېره کیسه کې د دې کیسې د قانون په اساس قاتل دی او که نه دی؟! حال دا چې دا ژوندي کول او مړه کول خو د الله په لاس کې دي، بل څوك په دې کې شریك نشته لکه څنګه چې اللّٰه عزوجل فرمایي: ﴿اللَّهُ الَّذِى خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ هَلْ مِن شُرَكَآئِكُم مَّن يَفْعَلُ مِن ذَٰلِكُم مِّن شَىْءٍ سُبْحَٰنَهُ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ [سُورَةُ الرُّوم: ٤٠]

ژباړه: الله هغه ذات دی چې تاسو یې پیدا کړي یاست، بیا یې رزق درکړی دی، بیا مو مړه کوي، بیا به مو ژوندي کوي، آیا ستاسو په شریکانو کې داسې څوك شته چې دا کار وکولای شي؛ الله پاك او اوچت دی له هغه څه چې دوی یې ورسره شریک ګرځوي.

یعنې په مرګ او ژوند کې الله تعالی سره هېڅوك شریك نشته، بیا د حافظ حسین احمد په پوښتنه له تهانوي څخه د تصرف د قوت د استعمال په اړه پوښتنه څه معنی لري، همدا چې دا د مرګ او ژوند په سلسله کې له الله سره شریك دی ځکه په دې کې هغه د تصرف قوت شته دی، چې هغه وژل دي او ژوندي کول دي.

د ارواح ثلاثه مصنف داسې یوه بله کیسه بیانوي چې په هغې کې مرګ د غیر الله په قدرت او تسلط کې لیدل کېږي، نوموړی لیکي:

جس زمانے میں دیوبند میں ہیضہ پھیلا ہوا تھا تو اس زمانے میں حضرت مولانا یعقوب رحمہ اللہ تعالی نے ایک پیشین گوئی کی تھی اور لوگوں سے فرمایا تھا کہ یہاں وبا آنے والی ہے آگر ہر چیز میں صدقات کئے جائیں تو اللہ تعالی سے امید ہے کہ یہ بلا ٹل جاوے۔ بعض اہل دیوبند نے کہا معلوم ہوتا ہے مدرسہ میں کچھ ضرورت ہو گئی ہے۔ اس کی خبر کسی نے مولانا کو کر دی اس پر بہت غیظ آیا اور فرمایا یعقوب اور یعقوب کی ساری اولاد اور سارا دیوبند، یعقوب اور یعقوب کی اولاد اور سارا دیوبند (اس جملے کا چند بار تکرار فرمایا) اس وقت حاجی محمد عابد صاحب حجرے کے اندر بیٹھے ہوئے تھے۔ اس کو سن رہے تھے وہ گھبرا کر باہر نکلے اور کہنے لگے کہ حضرت کیا فرما رہے ہیں۔ مولانا نے دریافت فرمایا کہ کیا کہا ہے۔ حاجی محمد عابد صاحب نے وہی جملہ سنا دیا کہ یوں فرما رہے ہیں۔ مولانا نے فرمایا اب تو یوں ہی ہوگا۔ اس کے بعد اس کثرت سے وبا پھیلی کہ بیس

پچیس جنازوں کی نماز ایک دفعہ ہوتی تھی۔ پس دیوبند ہی خالی ہو گیا۔ جب یہ وبا ختم ہوئی تو آسمان کی طرف دیکھ کر فرمایا کہ میں تو سمجھا تھا کہ میرا وقت بھی آگیا۔ کیا ابھی دیر ہے۔ پس اسکے بعد اپنے وطن نانوتہ پہنچے اور وہیں جا کر مبتلا مرض ہو کر واصل بحق ہوئے۔

[ارواح ثلاثہ ص٤٤٩]

ژباړه: په کومه زمانه کې چې په دیوبند کې هیضه (د خېټې خرابېدو ناروغي) خپره شوې وه نو په دې وخت کې مولانا یعقوب رحمة الله علیه یوه پېشن ګوئي ورکړې وه چې په دې سیمه د وبا ناروغي راتلونکې ده، که په هر څه کې خیرات او صدقات ورکړل شي نو له الله څخه امید دی چې دا مصیبت به ختم شي، ځینو دیوبندیانو وویل: داسې ښکاري چې په مدرسه کې کوم شي ته اړتیا پېښه شوې ده. دا خبره چا مولانا ته وکړه نو هغه پرې ډېر سخت غوسه شو او ویې ویل: یعقوب او د یعقوب ټول اولاد او ټول دیوبند!، یعقوب او د یعقوب ټول اولاد او ټول دیوبند! (دا خبره یې څو ځله تکرار کړه) په دې وخت کې حاجي محمد عابد صاحب په حجره کې ناست ؤ، دا خبرې یې واورېدلې نو په ډار سره د باندې راووتلو او ویې پوښتل چې: حضرت صاحب څه وایاست؟ مولانا ترې پوښتنه وکړه چې څه مې وویل؟ حاجي صاحب هماغه خبره ورته وکړه چې داسې دې وویل، نو مولانا صاحب ورته وویل: اوس به همداسې کېږي، له دې څخه وروسته وبا دومره عامه شوه چې شل، پنځه ویشت جنازې به په یو وخت کېدې، تر دې چې دیوبند خالي شو او کله چې دغه وبا پای ته ورسېده نو هغه آسمان ته وکتل او ویې فرمایل: زه پوه شوی وم چې زما وخت هم نږدې دی نو آیا وخت پکې شته که څنګه؟ او له دې څخه وروسته خپل وطن نانوته ته لاړ او هلته په ناروغۍ اخته شو او وفات شو.

الله رب العزت فرمايي: ﴿وَأَنَّهُ هُوَ أَمَاتَ وَأَحْيَا﴾

[سُورَةُ النَّجْم: ٤٤]

ژباړه: بې شکه الله مړه کول او ژوندي کول کوي.

او بیا شل، پنځه ویشت جنازې وتل او په دې وخت کې د دیوبند خالي کېدل، د دې خبرې دلیل نه دی چې مړه کول هم د دیوبند د علماؤ په لاس کې دي؟ یعنې لومړی خو یې د غیبو خبر ورکړ چې مریضتیا راځي بیا چې کله خلکو فکر وکړ چې ملا صاحب چندې لپاره داسې وايي نو سړی غوسه شو او د هغې اثر دا ؤ چې د دیوبند زیات خلک مړه شول او دیوبند تش تور شو!! د دومره خرافاتي عقایدو سره سره بیا هم دیوبندیان موحدین دي؟

د مرګ اسباب خو مشهور دي خو دلته يو څه عجيب او نا آشنا اسباب واورئ.

## تعویذ د ژوند لپاره درمل او دوايي کېدل

حاجي امداد الله وايي: امروہے میں ایک ہندو تھا۔ وہ حضرت عبد الباری سے کمال اعتقاد رکھتا تھا۔ اس نے آپ سے عرض کیا کہ میرے کوئی اولاد نہیں ہے تعویذ دیجئے۔ حضرت نے تعویذ دے کر فرمایا کہ ابھی تو اپنی بیوی کے بازو پر باندھ دو اور بعد تولد فرزند اس کے باندھ دینا۔ تعویذ کی برکت سے اس کے لڑکا پیدا ہوا۔ جب وہ سن تمیز کو پہنچا باغوائے بعض ہنود اس تعویذ کو کھول دیا۔ اس میں اڑای بھینسری ساون آیا لکھا تھا۔ یہ پڑھ کر اس نے تعویذ پھینک دیا۔ تعویذ پھینک کر وہ نہانے کو گیا۔ دریا میں ڈوب کر مر گیا۔ [شمائم امدادیه حصه سوم ص٥٥]

ژباړه: په امروهه کې يو هندو ؤ، هغه له حضرت عبدالباري صاحب سره د مينې د کمال عقيده لرله نو هغه ته يې وويل چې زما اولاد نشته او ما ته تعويذ راکړه، حضرت صاحب تعويذ ورکړ او ورته يې وويل: اوس دا تعويذ د خپلې ښځې په مټ وتړه او د بچي له پيدايښت څخه وروسته يې په ماشوم پورې وتړه، د تعويذ په برکت د هغه بچی پيدا شو، کله چې هغه په ښه او بد د پوهېدو (عقلمندۍ) مرحلې ته ورسېد، نو د ځينو هندوانو په لمڅون يې هغه تعويذ خلاص کړ، په هغې کې (اړای بهینسری ساون آیا) ليکل شوي وو، د دې له ويلو سره هغه تعويذ وغورځولو، د تعويذ له غورځولو څخه وروسته هغه د لمبلو لپاره سيند ته ښکته شو، چې هملته غرق او مړ شو.

يعنې د تعويذ په برکت سره د هغه اولاد وشو او برکت هم د کومو الفاظو ؤ؟ «اړای بهینسری ساون آیا»، نه د قرآن آيت ؤ او نه د نبي ﷺ دعا وه، مګر د خرافاتي ديوبنديانو په آند دغه کلمه هم د برکت موجبه ده!

او بيا مرګ هم ورته د «اړای بهینسری ساون آیا» تعويذ د غورځولو له امله راغی، که دا يې نه وای لرې کړی نو مرګ به نه وای رامينځته شوی، بيا خو د دوی په آند الله تعالی هېڅ اختيار نلري (والعياذ بالله) حال دا چې الله تعالی فرمايي: ﴿يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ﴾ [سُورَةُ الأنعَام: ٩٥]

ژباړه: ژوندی له مړي څخه راوباسي او له ژوندي څخه د مړي راويستونکی راويستونکی دی، همدغه

الله دی، نو کوم طرف ته تاسو ګرځولی شئ!
اوس د مرګ او ژوند مالك الله دی او که «ارای بهینسری ساون ایا»، فیصله کول پر تاسو دي.

## د مړینې (وفات) لامل

د مرګ او ژوند په اړه د حاجي امداد الله عقیده واورئ؛ هغه وايي: مشہور ہے کہ بوجہ دعائے حضرت ابراہیم بن ادھم ان کے صاحبزادے محمود نے وفات پائی لیکن محققین کے نزدیک صحیح یہ ہے کہ بوجہ غایت محبت و شفقت پدری حضرت ابراہیم نے ان کو ایک دم سے بھر دیا ان سے تحمل نہ ہوسکا اس وجہ سے انتقال ہوگیا۔ [شمائم امدادیه؛ حصه سوم: ص۴۹]

ژباړه: مشهوره ده چې د ابراهیم بن ادهم د دعا له کبله د هغه زوی محمود وفات شوی ؤ خو د محققینو په آند دا صحیح خبره ده چې بې حده مینې او پلرني شفقت له امله حضرت ابراهیم هغه په یو دم (چوف) سره ډك كړ، هغه ونشو زغملای نو له دې امله مړ شو.

حال دا چې اسلام کې د مړینې لامل دا نه دی بلکې الله د مرګ او ژوند واکدار دی، لکه څنګه چې له دې آیتونو څخه ثابتېږي.

الله تعالی فرمايي: ﴿لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِ وَيُمِيتُ﴾ [سُورَةُ الأعراف: ۱۵۸]

ژباړه: له الله پرته بل څوك حق معبود نشته او هغه ژوندي کول او مړه کول کوي.

همداراز فرمايي: ﴿هُوَ يُحْيِ وَيُمِيتُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ [سُورَةُ يُونس: ۵۶]

ژباړه: دغه الله ژوندي کول او مړه کول کوي او تاسو به الله ته ورګرځېږئ.

بل ځای فرمايي: ﴿وَإِنَّا لَنَحْنُ نُحْيِ وَنُمِيتُ وَنَحْنُ الْوَٰرِثُونَ﴾ [سُورَةُ الحِجر: ۲۳]

ژباړه: بې شکه مونږه ژوندي کول او مړه کول کوو او مونږه میراث وړونکي یو.

په یو ځای کې الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَا يَمْلِكُونَ مَوْتًا وَلَا حَيَوٰةً وَلَا نُشُورًا﴾ [سُورَةُ الفُرقان: ۳]

ژباړه: دوی نه د مرګ مالکان دي او نه د ژوند او نه د بیا پورته کېدو.

نو د غیر الله په اړه دا عقیده لرل چې هغه د مرګ او ژوند مالکان دي، دا صریح د کفر او شرك عقیده ده، د حاضر او ناظر عقیده دومره مشهوره ده چې بریلیان دا خبره کوي: چې نبي ﷺ حاضر او ناظر دی نو په دې وخت کې د دیوبندیانو د فتواګانو د ماشین مخ د بریلیانو طرف ته ګرځي چې هغوی مشرکان بولي، مګر د خپل کور له حاله ناخبره دي، په داسې حال کې چې دوی د خپلو مشائخو لپاره هم د حاضر او ناظر عقیده لري، څکه د

دوی ځینې عبارات داسې دي چې دوی پکې إدعا کوي چې د دوی مولانا د ذات په لحاظ سره هر ځای کې حاضر دی، د ذات په لحاظ په هرځای کې حاضربدل خو حتی د الله تعالی صفت هم نه دی، الله تعالی فرمايي: ﴿الرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى﴾ [سُورَةُ طٰه: ٥]

ژباړه: رحمن ذات په عرش باندې برابر دی.

بل ځای فرمايي: ﴿وَأَنَّ اللَّهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا﴾ [سُورَةُ الطَّلَاق: ١٢]

ژباړه: او يقينا د الله علم د هر شي راايسارونکی دی.

**اوس د ديوبند د علماوو د پرمختګ حال وګورئ:**

د (درس حیات) مصنف د ګڼه ګوڼې او ټېل ماټېل په اړه د خپل پلار د علم حاصلولو يوه بله کيسه داسې ذکر کوي:

«کہ والد صاحب گھر سے چلے کئی دن چلنے کے بعد کرنال پہنچے مسجد میں نابینا حافظ صاحب نے کہا خیرالدین، السلام علیکم! میرے پاس آو۔ میں نے توجہ نہ دی۔ سرسری جواب دیتے ہوئے نکل گیا۔ انہوں نے پکڑنے کے لئے شاگرد دوڑائے۔ میں قوی تھا سب کو جھٹک کر دور پھینک دیا اور آگے بڑھتا گیا یہاں تک کہ میں شہر پناہ کے پھاٹک سے جیسے باہر نکلا۔ اچانک زمین نے میرے قدم تھام لئے۔ بہت کوشش کی لیکن قدم ذرا بھی آگے نہیں بڑھ سکا۔ میرے ساتھیوں نے مل کر بہت زور لگایا لیکن وہ بھی میرے قدموں کو زمین کی گرفت سے آزاد نہیں کرا سکے۔ یہاں تک مجبور ہو کر شہر کی طرف واپس لوٹ آیا اور وہیں سے اپنے ساتھیوں کو رخصت کیا۔ شہر میں آنے کے بعد مجھ کو خیال ہوا کہ وہ نابینا حافظ کون تھے جنہوں نے باوجود نا واقف اجنبی اور نابینا ہونے کے مجھ کو میرا نام لے کر پکارا۔ چلوں ان سے تحقیق حال کروں۔ میں جب ان کے پاس پہنچا تو وہ زور زور سے ہنسے اور کہا آخر آگئے بہت جان چھڑا کر بھا گے تھے۔ میں نے ان سے کہا ان باتوں کو چھوڑئیے ۔ آپ یہ بتلائیے کہ آپ نے مجھ کو کیسے پہچانا اور میرا نام آپ کو کیسے معلوم ہوا؟ انہوں نے فرمایا کہ تمہارے نام! مجھ کو تو تمہارا حال معلوم ہے کہ کس غرض سے نکلے ہو۔ کیا تم سمجھتے ہو کہ جس طرح تم ادھر روکے گئے ہو ادھر نہیں روکے جاو گے۔ تمہارا علم کا ایک حصہ اس شہر میں مقرر ہے۔ جب تک تم اس کو حاصل نہیں کروگے اس شہر سے نہیں نکل سکتے۔ [درس حیات ص١٥٦]

ژباړه: والد صاحب له کوره روان شو، له څو ورځو مزل وروسته کرنال (سیمې) ته ورسېد، په

جومات کې ړوند حافظ صاحب ورته وویل: خیر الدین صاحب السلام علیکم! زما خواته راشه! ما ورته څه پاملرنه ونکړه، له سرسري ځواب ورکولو څخه وروسته ووتم، هغه د ایسارولو لپاره خپل شاګردان راپسې کړل، زه غښتلی او قوي وم نو ما ټولو ته ټېله ورکړه او لرې مې وغورځول او مخکې روان شوم، تر دې پورې چې زه د ښار له دروازې څخه ووتلم نو ناڅاپه ځمکې زما قدمونه ونیول، ډېر کوښښ مې وکړ خو یو قدم هم مخکې نشوم، زما ملګرو ډېر زیات زور وواهه خو هغوی هم زما قدمونه له ځمکې څخه راخلاص نکړل، تر دې چې زه مجبور شوم او د ښار لور ته بېرته ستون شوم او خپل ملګري مې له هماغه ځایه رخصت کړل، ښار ته له راتلو څخه وروسته ماسره دا فکر پیدا شو چې هغه ړوند حافظ صاحب څوک ؤ چې هغه له ړوندوالي او نه پېژندلو سره سره یې زما نوم واخیست او غږ یې راباندې وکړ، راځه چې له هغه څخه رښتینی حال معلوم کړم، زه چې هغه ته لاړم نو هغه په زوره وخندل چې آخر هم راغلې او له ډېر ځان خلاصولو څخه وروسته تښتېدلی وې، ما هغه ته وویل: دا خبرې پرېږده او ته دا خبره وکړه چې تا زه څنګه وپېژندلم؟ او زما نوم دې څنګه معلوم کړ؟ هغه راته وویل: ستا نوم څه چې ستا حال هم ما ته معلوم دی چې ته په څه غرض سره راوتلی وې او ته پوهېږې چې ته څنګه په هغه ځای کې حصار کړی شوې، د بیا لپاره به دلته نه نیول کېږې، ستا د علم یوه حصه په دې ښار کې ټاکل شوې، کله چې ته هغه علم ترلاسه نه کړې نو ته له دې ښار څخه نشې وتلی.

یو ړوند انسان، د قدمونو د کشار په اورېدو سره یو ناپېژانده انسان پېژني او د هغه د سفر مقصد هم معلوموي او بیا د تقدیر لیك ورته وایي چې ستا د علم یوه برخه په دې ښار کې ټاکل شوې ده نو دا الهي کارونه دي، آیا دا په غیر الله کې جمع کېدای شي؟ او بیا دا هم د سوچ خبره ده چې په جومات کې یې د هلاکېدو څخه منع کړ او د ښار په پاټك کې یې ځمکې قدمونه ونیول، کېدای شي چې دا ځمکه هم د حافظ صاحب د حکم تابعداره وي او بیا د هغه دا دعوه چې ته به نور دلته نه نیول کېږې، دا ښکاره د مسائلو د تصرف څخه ده، نو که دا مسئله د تصرف له باب څخه نه وي نو دا د کوم باب مسئله ده؟ د دې باب دا کړی کېدای شي چې دیوبندیان د سراقه له کیسې سره مقایسه کړي چې د سراقه د اس پښې په ځمکه کې ننوتلې وې نو هغه ښېنه وغوښتله، هغه بېرته خلاص شو، همدارنګه د نوموړي قدمونه هم ځمکې ونیول تر کوم وخت پورې چې ده بېرته د ګرځېدو اراده ونکړه نو دا دغه شان بند ؤ او له کوښښ سره سره

هم ځمکې پرېښودو لکه څنګه چې دا د نبي ﷺ معجزه وه، دغه شان دا د دې حضراتو کمال او بې دليله کرامتونه دي.

همدا راز د ارواح ثلاثه ليکوال يو بل تصرف هم بيانوي او وايي چې: ایک شخص نے حافظ کی غزل شروع کی اور ایک آدھ شعر پڑھ کر خود رک گیا اور کہا کہ مولانا آپ تو مجھے پڑھنے نہیں دیتے اور بعد میں کہا جب ارادہ کرتا تھا تب ہی کوئی انگلی زبان پر آکر رکھی جاتی اور اسے دبا دیتی تھی۔ [ارواح ثلاثه ص۲۵۹]

ژباړه: يو انسان د حافظ صاحب غزل پيل کړ، له يو نيم شعر ويلو څخه وروسته هغه خپله غلی شو، او ويې ويل: مولانا صاحب! ته خو ما ويلو ته نه پرېږدې او بيا يې وويل: کله چې اراده وکړم نو يوه ګوته زما په ژبه باندې کېښودل شي او هغه زور کړي.

په دې ځای کې يې له بدۍ څخه د منع کولو تصرف ښکاره کړ او اوس وګورئ د نېکۍ کولو هغه بنډل يې هم له ځان سره کور کې ساتلی، چې هغه د پير صاحب لخوا د نېکۍ توفيق ورکول دي.

د مسلمان عقيده دا ده: ﴿لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰه﴾

ژباړه: له ګناه څخه ژغورل او د نېکۍ توفيق ورکول يوازې د الله په لاس او قدرت کې دي.

په امداد المشتاق کې راغلي: کسی خادم نے حضرت سے بیان کیا کہ میں نے اب کے چلہ کھینچا اور روزانہ سوا لاکھ اسم ذات پڑھا مگر کچھ فائدہ نہ ہوا شاید حضرت مجھ سے ناراض ہیں ثمرہ نہیں ملا۔ فرمایا اگر میں ناراض ہوتا تو تمہیں سوا لاکھ پڑھنے کی توفیق ہی کہاں سے ہوتی۔ [ص۱۶۲]

ژباړه: يوه خادم حضرت ته وويل چې ما دې ځل چله (څلوېښت ورځې د الله بندګۍ ته ځان وقف کول) پيل کړه او هره ورځ مې پاو باندې يو لاک (سل زره) ځله د الله نوم یاداوه، خو هېڅ ګټه يې ونکړه، کېدای شي حضرت صاحب له ما څخه خفه وي ځکه ما له دې ذکر څخه ګټه ترلاسه نه کړه، هغه ورته وويل: که زه له تا څخه ناراضه وای نو تا د پاو باندې يو لاک ځله ويلو توفيق له کوم ځايه کړ؟

دا هغه تصرف دی چې د کوم ښکارندوينه ديوبندي علماؤ په څو څو ځايونو کې کړې ده، اشرف علي تهانوي د حاجي امداد الله صاحب د مريدانو د تربيت يوه کيسه داسې تشريح کوي او ليکي: یہ ہے تربیت اخلاق اور تصرف کی قوت اس سے ظاہر ہے کہ چالیس روز میں واصل بنادیا۔ [امداد المشتاق ص۱۶۱]

ژباړه: دا د اخلاقو تربيت او د تصرف هغه قوت

دی؛ له دې څخه معلومه شوه چې هغه په څلوېښت ورځو کې [الله سره] وصل (پیوست) شو.

## د شیخ د تصور په اړه بله کیسه

د دوی شیخ الکل في الکل امداد الله مهاجر مکي وايي: کہ میرے حضرت باوجود اخفائے احوال کے ایسا تصرف قوی رکھتے تھے کہ جس سے عقل حیران رہ جاتی تھی۔ حافظ محمود صاحب داماد مولانا مولوی مملوک علی صاحب ایک مرتبہ حضرت پیر و مرشد کی خدمت میں بعد بیعت کے حاضر ہو کر عرض کرنے گئے کہ مجھے تصور شیخ کی اجازت دیجئے تا کہ تصور شیخ کیا کروں حضرت نے فرمایا کہ جب محبت و عقیدت غلبہ کرتی ہے تب تصور شیخ کون کرتا ہے غلبہ محبت سے تصور شیخ خود بخود بڑھ جاتا ہے۔ حضرت کے اس فرمانے سے ایسا تصور شیخ ان پر غالب ہوا کہ ہر جگہ صورت شیخ کی نظر آتی تھی۔ چلتے چلتے حیران ہو کر کھڑے ہو جاتے کہ صورت شیخ کی سامنے کھڑے ہے جہاں قدم رکھتے ہیں وہاں بھی صورت شیخ موجود ہے۔ نماز میں سجدے کی جگہ صورت شیخ دیکھ کر نماز کی نیت توڑ دیتے تھے۔ حضرت سے عرض کیا کہ اب تو نماز پڑھنی مشکل ہو گئی ہے کس طرح پڑھیں۔ حضرت کی ادنی توجہ سے جیسے یہ حالت پیدا ہوئی جاتی رہی اور دوسری حالت ہو گئی۔ [شمائم امدادیه: حصه سوم ص۸۱]

ژباړه: زما حضرت صاحب د خپلو کرامتونو له پټولو سره سره د دومره قوي تصرف څښتن ؤ چې عقل ورته حیران پاتې کېده، حافظ محمود صاحب د مولانا مملوك علي صاحب زوم ؤ، يو ځل له بیعت څخه وروسته د خپل پیر او مرشد په خدمت کې حاضر شو او ورته يې وويل چې ما ته د شيخ د تصور اجازه راکړه چې زه د شیخ تصور کوم، حضرت صاحب ورته وويل: کله چې مينه او محبت غالب شي نو بيا به د شيخ تصور څوک کوي؟ د مينې له غلبې څخه د شيخ تصور خپله ډېرېږي، د حضرت په دې فرمان سره د شیخ تصور دومره پرې غالب شو چې په هر ځای کې ورته شيخ ښکارېده، په روانه، روانه کې به ودرېد چې د شيخ څېره زما مخې ته ولاړه ده او په کوم ځای کې چې هغه قدم ږدي نو په هغه ځای کې به هم ورته د شیخ څېره ښکارېده، تر دې چې په لمانځه کې د سجدې په ځای کې به يې هم د شیخ څېره لیدله، نو نیت به يې مات کړ، حضرت صاحب ته يې وويل چې اوس

لمونځ کول راته سخت شول، نو څنګه وکړم (لمونځ څنګه اداء کړم)، د حضرت په ډېره لږ توجه سره چې څنګه دا حالت رامینځته شوی ؤ نو همداسې ختم شو او پخواني حالت ته وګرځېد.

ګوره! هغه په ډېره لږه توجه (یعنی تصرف) انځورونه مخکې، وروسته کړل او معلومه نه ده چې په ډېره توجه به یې څه غضب رامینځته شوی وای، د یو انسان په ډېرو ځایونو کې ښکاره کېدل چې دوی په خپلو خرافاتي عقایدو سره ممکن کړل؛ دا نو د کوم قدرت کمال دی؟!

## رڼا تیاره کېدل

امداد الله وایي: کہ حضرت شیر خان صاحب جب حالت نوکری میں وقت شب ذکر نفی و اثبات کرتے تھے تو ان کے منہ سے ظلمت و نور دونوں نکلتے تھے۔ مدت تک کسی کو معلوم نہ ہوا۔ ایک دفعہ وہ مسجد میں ذکر کر رہے تھے ایک شخص کا ادھر گزر ہوا اس نے دیکھا کہ مسجد میں کبھی اندھیرا ہو جاتا ہے اور کبھی روشنی ہو جاتی ہے۔ متحیر ہو کر سبب دریافت کرنے مسجد کے اندر آیا۔ آپ کو دیکھا کہ ذکر میں مصروف ہیں جب لا الہ کہتے ہیں منہ سے تاریکی نکلتی ہے اور جب الا اللہ کہتے ہیں روشنی نمودار ہوتی ہے۔ [شمائم امدادیه: حصه سوم ص۸٤]

ژباړه: حضرت شیر خان صاحب چې به کله د کار پر مهال، د شپې د نفې او اثبات ذکر کولو نو د هغه له خولې څخه به رڼا او تیاره دواړه راوتل، تر یوې مودې پورې دا چا ته معلومه نشوه، یو ځل هغه په جومات کې ذکر کولو، یو انسان یې ترڅنګ تېر شو نو هغه ولیدل چې کله به تیاره شوه او کله به رڼا شوه، هغه حیران شو او د دې سبب د معلومولو لپاره راننوتلو، هغه یې ولیدلو چې هغه په ذکر مشغول ؤ چې کله به یې [لا إله] وویله نو د هغه له خولې څخه تورتم راوتلو او کله به یې چې [إلا الله] وویله نو رڼا به شوه.

دا رڼا نه د صحابؤ او نه د نبي ﷺ له خولې څخه راوتلې او نه د تابعینو او د دین د إمامانو له خولې څخه، دا بریښنا کوټ یا برق سټېشن یوازې د خرافاتي دیوبندیانو په خولو کې لګېدلی دی؟ دا خبره مو له بریلیانو څخه اورېدلې وه چې زمونږ بزرګ صاحب به چې یو لور ته سلام وګرځاوه نو سړی به حافظ (قاري) جوړ شو او که چپ لور ته به یې سلام وګرځاوه، نو سړی به ناظره ویونکی (له مخې ویونکی) شو.

اوس د توحید له دې دیوبندي ټېکدارانو هم لږ څه واورئ، چې دوی له بریلیانو څخه په خرافاتو کې مخکې دي او که وروسته، په ارواح ثلاثه کې راغلي: حضرت حاجی صاحب قدس سرہ روپوس

پنجلاسہ میں مقیم رہے اور وہیں توجہ کا حلقہ ہوتا تھا۔ اس پر عبداللہ شاہ فرماتے ہیں کہ میاں یہ کیا حلقے وغیرہ تم نے بنائے ہیں ہم نے اپنے بادشاہ (شاہ عبد الرحیم صاحب) کو دیکھا ہے کہ نماز میں جب داہنا سلام پھیرا تو ادھر کی صف ٹوٹ گئی۔ جب بایاں سلام پھیرا تو ادھر کے آدمی گر گئے۔ نہ حلقہ تھا نہ مجلس۔

ژباړه: حضرت حاجي صاحب قدس سره په روپوس پنجلاسه کې مقیم ؤ او په هغه ځای کې به د هغه د توجه حلقه وه نو په دې کې عبد الله شاه صاحب وویل: میا صاحب دا څه حلقې وغیره دې جوړې کړې دي، مونږه خو خپل بادشاه شاه عبد الرحیم صاحب لیدلی دی چې کله به یې د لمونځ ښي طرف ته سلام وګرځولو، نو صف به مات شو او چې بل طرف ته به یې سلام وګرځولو نو د دې طرف خلک به وغورځېدل؛ نه حلقه وه او نه څه مجلس.

**د خراسان غږ مجلې درنو لوستونکو!**

د دې معلوماتي لړۍ راتلونکې څوارلسمه برخه به إن شاء الله د مجلې په اته دېرشمه ګڼه کې ولولئ، په دې هیله چې یاده برخه او له دې وړاندې نورې برخې مو لوستلې وي او نورو سره مو هم شریکې کړې وي.

